بسم الله الرحمن الرحيم


کتاب پېژندنه:

کتاب: افغانان د شپږ شپېتم کال په پسرلي کې له روسانو سره د جنگ په حال کې
لیکوال: پوهاند محمدحسن کاکړ
ایډیټ او چاپچارې: سمیع الله زیار او بابرزی هېواددوست
کمپوز: سلطان سنجر راسخ
خپرندویه: تکتو کتاب کور، کاسي روډ کوټه
جلد: ۱۰۰۰
چاپ کال: ۱۴۰۰ل
چاپځای: تکتو کتاب کور، النور د کتابونو مارکېټ، ۵ نمبر دوکان، گوالمنډۍ چوک ته نږدې، کاسي روډ کوټه



د اړیکې شمېره: ۰۳۱۵-۸۸۵۹۰۸۵ (۰) ۹۲ +
ایمیل ادرس: kafeelqurban@gmail.com
فېسبوک: takatoo.Kitabkor






**کورودانی:**

لـه کاکړ تاريخ بنسـټ څخـه مننـه کـوو چـې د پوهانـد محمـد حسـن کاکـړ د «فغانـان د شـپږ شـپېتم کال پـه پـسرلي کـې لـه روسـانو سره د جنـګ پـه حـال کـې» کتـاب د بيـا چـاپ اجـازه يـې راکـړه»

درنښت
تکتو کتاب کور
کاسي روډ کوټه



# د بنسټ یادښت

ډاکټر نجیب الله د خپل دولتي سیستم هغه اړخونه ورو ورو په خاص تکتیک سره بدلول، کوم چې روسي مشاورینو د ببرک کارمل په وخت کې تنظیم کړي وو. نجیب الله دغه چلندونه د «ملي روغې جوړې سیاست» په نامه ونومول. د دغو چلندونو پر وړاندې د حکومت د مخالفینو او ولس عکس العمل څه و؟

دا اثر پوهاند کاکړ هغه وخت لیکلی کله چې په ۱۳۶۵ کال کې له پنځه کال بند وروسته ازاد شو. په ۱۳٦٦ پسرلي کې یې ددې اثر په لیکلو پیل وکړ. په دې لیکنو کې پوهاند کاکړ هغه بدلونونه لیکلي کوم چې د نوموړي د پنځه کلن بند په موده کې رامنځته شوي وو او همدارنګه یې هغه مالومات ټول کړي کوم چې یې له خپلو ملګرو څخه د موجودې سیاسي اوضاع په اړه تر لاسه کړي وو. دغه رساله د یو کتاب په شان داسې منسجمه نه ده چې به په یو غټ مرکزي ټکي څرخیږي؛ خو کوښښ شوی چې په دغو څه باندې دریو میاشتو کې د وطن د عمومي حالاتو یو لنډ تصویر وي.

ددې اثر په سریزه کې پوهاند کاکړ د خپل بندي کېدو لاملونه څرګند کړي چې ولې او په کوم تور بندي شو؟ د ده د خلاصون په موخه دا خلي او نړیوال غبرګونونه څه ول؟ د کورنۍ غړیو او دوستانو یې څومره هلې ځلې وکړې؟ آیا د ملي پخلاینې د سیاست له مخې ازاد شو او که پر حکومت د فشارونه له وجې؟

ډاکټر نجیب الله د جنوري ۱۵ – ۱۹۸۷خپله سیاسي پالیسي بدله او نرمښت ته یې تمایل وکړ. په دې اثر کې تاسې لولی چې د ملي پخلاینې اصلي غایه څه وه؟ جهادي ګوندونو ته نیت څه و؟ او وسلوالو مجاهدینو یې پر وړاندې څه غبرګون درلود؟ د دې سیاست د تحقیق لپاره نوي اقدامات څه وو؟ د سیاسي بندیانو ازادېدل څنګه ترسره شول؟ حکومت په څه ډول دیني سیاست او تبلغات پیل کړل؟ د ملي پخلاینې سیاست ولې ناکام

شو؟ د حکومت د حاکمیت ساحه څومره وه؟ د مجاهدینو د حاکمیت ساحه څومره وه؟

د کتاب لومړۍ برخه موږ د کمونیستي رژیم، خلقي او پرچمي ډلګیو او د هغه وخت د سیاسي اوضاع، نویو بدلونونو او د افغانانو د هغو ستونزو په اړه خبروي چې ورسره مخ وو. په په ټوله کې دا د وطن د عمومي حالاتو یو تصویر دی.

د بحث په بله موضوع کې د جنګ په شرایطو کې د موجودې بې سارې قیمتي او د حکومت د امتیازي پالیسیو په رڼا کې د ولس د بېلا بېلو صنفي او شغلي ډلو په ژوند نظر اشول شوی دی. په دې برخه کې تاسې د هغه وخت د اقتصادي حالاتو او پر خلکو یې د اغېزو په اړه لولی. زراعتي تولیدات په کومه کچه و؟ د اجناسو د بیعې د لوړوالي او بې سارې قیمتي لاملونه څه و؟ د ژوند په نورو اړخونو د بې ساري قیمتي تأثیرات څه وو؟ د ښځو حال او پر دوی د قیمتي او جګړې تأثیرات څه وو؟ د وسلوالو قواوو، پوځي منسوبینو او خادستانو امتیازات په کومه کچه وو؟

همدا راز د هېواد په غټو موضوعات عمومي نظر اچول شوی، دا چې په وروستیو کې کلونو کې اقتصاد، صنعت او سیاست کوم لور ته لاړ؟ سیاسي اوضاع څومره خرابه شوه؟ بهرنۍ لاسوهنې په کومه اندازه وې؟ د غوایي کودتا په راتګ سره د هېواد چارې څومره خرابې شوې؟ د دې بدمرغیو اصلي منبع څه وه؟ د متضادو ایډیالوژي ګانو نتجه څه وه؟ د کمونیزم او اسلام ترمنځ ایډیالوژیکي تضاد څه و؟

د کتاب اصلي موضوع له شورویانو سره د افغانانو جګړه ده. دا چې د شوروي اتحاد موخه او منطق له دې یرغل نه څه وه او وروسته یې بیا خپل یرغل څنګه محاسبه کړ، د دوی وېره له افغانانو څه وه، ولې په افغانستان کې د یوه کمزوري حکومت غوښتونکي وو او افغانانو څنګه ملي دفاع وکړه؟ تاسو یې په دې اثر کې لولی.

په پای کې لولی چې د دې اوږدې کشالې د حل لپاره ډیپلوماټکي هڅې څه وې او پر وړاندې یې کوم لوی خنډونه موجود وو چې باید لرې شوي وای.

دا رساله په داسې حال کې لیکل شوې چې لیکوال هر څه پخپلو

سترګو لیدل. ارزښت یې په دې کې چې منبع یې نور کتابونه نه دي؛ بلکې خلک او هغه څه دي چې خپله یې شاهد دی او ګوري یې. د یوې لنډې دورې اکثر حالات یې بیان کړي.

کاکړتاریخ بنسټ

# لړلیک


د سیف الدین لودین کتابتون
کتاب پر لېسې شمېره

# سریزه

د ۱۳٦٥ کال په کب کې، کله چې زه په زندان کې د پنځو کلونو تېرولو څخه وروسته آزاد شوم، د یادښتونو په لیکلو مې پیل وکړ. ملګري او دوستان چې زما سترې مه شي ته راتلل، زما لپاره د نویو او روانو مطالبو عمده منابع شول. هسې خو زه هم په خپله د دې تږی وم چې د وطن له پېښو نه خبر شم، او د دغو دوستانو مرکو زه نور هم پسې وتخنولم او یادښتونه مې ورځ په ورځ زیات شول. په اول کې مې دغه یادښتونه د آینده لپاره ثبتول، وروسته په دې فکر کې شوم چې یوه رساله ترېنه جوړه کړم. د ۱۳٦٦ کال په پسرلي کې سره له دې چې د کور او ژوند د بیا تنظیمولو چارې را په غاړه شوې، او له مکرویانو نه؛ چېرته چې زما فامیل زما د بندي توب په موده کې له خپلې یوې خپلوانې سره اوسېده – بېرته خپلې مېنې ته په خوشحال مېنه کې وکوچېدم او له دې امله ډېر وخت مې په دغسې چارو تېر شو. بیا هم دا رساله مې په درې میاشتو کې ختمه کړه.

دغه رساله د یو کتاب په شان داسې منسجمه نه ده چې به په یو غټ مرکزي ټکي څرخیږي، خو کوښښ شوی چې په دغو څه باندې دریو میاشتو کې د وطن د عمومي حالاتو یو لنډ تصویر وي. رساله په واقع کې د کابل د رژیم د ټوټالېټیرین سیستم شرح او له هغه نه د را پیدا شویو مسایلو بیان دی. د رسالې د لیکلو په وخت کې د کابل د رژیم واکمنو کوښښ کاوه چې د خپل سیاسي سېستم لومړنی ډېره زېره مطلقه بڼه واړوي او دومره یې نرمه کړي چې د منلو وړ وګرځي. کمونستان د فاشیستانو په خلاف هغومره افراطي نه دي چې د بایلنې او مطلقې ناکامی په وخت کې هم په خپله لاره ټینګ ولاړ وي. دوی په دغسې وخت کې خپله لاره اړوي، خو له خپل اصلي مطلب نه اوړي. له دې امله له دوی سره مقابله کول هغومره آسان نه دي، لکه چې عموماً فکر کېږي. په هر حال په دغو دریو میاشتو کې چې دغه رساله کېدله، د افغان مجاهد مقاومت د فشار په وجه نجیب الله د خپل

دولتـي سيسـتم هغـه اړخونـه ورو ورو پـه خـاص تکتيـک سره اړول، کـوم چـې روسي مشـاورانو د ببـرک کارمـل پـه وخـت کـې تنظيـم کـړي وو. نجيـب اللـه پـه دغـو چلندونـو بانـدې د «ملـي روغـې جـوړې سياسـت» نـوم ايښـی و.

د کتـاب لومـړی فصـل پـه عمـده ډول د دغـه چلنـد ځنګـه والـی بيانـوي او د هغـو پـه مقابـل کـې د مجاهدينـو او مقاومينـو او ولـس عکس العمل څرګنـدوي. په دوهـم فصـل کـې د جنـګ پـه شرايطـو کـې د موجـودې بـې سـارې ګرانـۍ، او هـم د حکومـت د امتيـازي پاليسـيو پـه رڼـا کـې د ولـس د بېلـو بېلـو صنفـي او شـغلي ډلـو پـه ژونـد بانـدې نظـر اچـول شـوی دی. دلتـه څرګنـده شـوې چـې د هغـې ادعـا پـه خـلاف چـې کمونسـتان يـې د برابـرۍ پـه بـاب کـوي، دوی يـا لـږ تـر لـږه د کابـل کمونسـتان پـه عمـل کـې د قـدرت او ثـروت لـه مخـې د انسـانانو پـه ژوندانـه کـې څرګنـد توپيرونـه راولي. د دغـه فصـل يـو بـل غـټ ټکـی د دوی هغـه چلندونـه او پروګرامونـه دي چـې پـه هغـو سره کوښـښ کـوي د خپلـې خوښـې يـوه نـوې ډلـه يـا طبقـه هسـکه کـړي. پـه دريـم فصـل کـې کوښـښ شـوی پـه هغـو ټکرونـو بحث وشي چـې پـه مخکنيـو دريـو لسـيزو کـې پـه افغـاني جامعـې کـې يـې تاوتريخوالـی شـديد کـړی دی. د همدغـو ټکرونـو شـدت او جمـع خارجـي وسـله وال دخالـت دی چـې افغانـان يـې پـه تېـرو نهـو کالونـو کـې بېسـارو سـتونزو سره مخامـخ کـړي دي. ټولـه ليکنـه زياتـره د جامعـې د بېلـو بېلـو اړخونـو سوسـيولوجيکي تحليـل دی، نـه تاريخـي څرګندونـه.

د دغـې سريـزې پـه پـای کـې لازمـه ګڼـم لـه دوسـتانو نـه د زړه لـه کومـې مننـه وکـړم، خـو بايـد ووايـم چـې مـا تـه ممکنـه نـه ده د ټولـو نومونـه يـاد کـړم. د دوی شـمېر زښـت ډېـر دی.

لومـړی هغـه ډلـه دوسـتان دي چـې زمـا د بنـد پـر ضـد يـې تـر خپلـې وسـې پـوري فعاليتونـه کـړي دي. پـه پوهنتـون کـې ډېـرو اسـتادانو او محصلانـو پـه پټـه او بـرالا د انتقـاد او همـدردۍ آوازونـه اوچـت کـړي وو. ځينـو زمـا د خلاصـون لپـاره حتـی ليـکل شـوي تضمينونـه هـم ورکـړي وو. د پـه اصطـلاح «ملـې روغـې جـوړې سياسـت» پـه اعـلام سره ډېـرو زمـا د خلاصـون پـه بـاب هلـې ځلـې وکـړې. زمـا د بنـد پـه اول سر کـې زمـا د خپـل لغـمان ولايـت سـپين ږيـرو او مشرانـو چـې شـمېر يـې تـر ديرشـو هـم زيـات و، زمـا د اتيـا کلـن خسـر ښـاغلي عبدالعزيـز پـه مـشرۍ دوه ځلـه پـه ګـډه د کابـل د رژيـم لويـان وليـدل، او لـه هغـوی سره يـې پـه داسـې

حال کې چې د غرور او وقار نه ډک چلند کاوه، زما د خلاصون په باب مرکې وکړې. که چېرې زما خلاصون په رښتیا د کابل رژیم په لاس وای، یقین دی چې زه به یې خلاص کړی وای، تر څو دغه سپین روبي یې احسانمن وای.

په خارجي ملکونو کې ډېرو پوهاندانو او د انساني حقوق فعالینو ې یا یې زه شخصاً او یا یې زما د انگریزي آثارو له لارې پېژندلم؛ او هم د نشراتي موسسو متصدیانو په تېره ښاغلي نبي مصداق زما د خلاصون په باب د کابل په حکومت د لیکونو په استولو او د خپرونو په کولو سره ډېر فشار راوړ. د دې ټولو د بشر د حقوقو د کمېسیون او عفوبین المللي او د بین المللي لیکوالو د پن د کلب تر څنگه په پرلپسې ډول آن زما تر خلاصون پورې دومره لیکونه د کابل رژیم حکومتي او گوندي لویانو ته واستول چې هغوی یې په رښتیا اندېښمن کړي وو. د عفوبین الملل له خوا فشار په خاص ډول زیات و چې زه یې د «وجدان بندي» اعلان کړی وم.

په پای کې زه له ټولو هغو افغاني ورونو او خویندو او په خاص ډول له ډاکټر شاهرخ گران نه مننه کوم چې د افغاني قوي دود له مخې یې زما د خلاصون په مناسبت د شیریني په نامه له ماسره ډېرې مالي مرستې کړې دي. دغو مرستو زه په دې قادر کړم چې د دغې لیکنې په وخت کې له مالي تنگسې نه یو څه آرام اوسم.

م.ح.ک.

بر تهکال – پېښور

د جون۶، ۱۹۸۸/جوزا ۱۶، ۱۳۶۷

**بسم الله الرحمن الرحیم**

# لومړی فصل

## اوسنی سیاسي اوضاع

**مقدمه**

لـه یـوې میاشـتې کـم پنځـه کالـه بنـد نـه وروسـته د شـنبې پـه ورځ د حـوت پـه لسـمه ۱۳٦٥ (مـارچ ۱، ۱۹۸۷) زه د پلچرخـي لـه زنـدان نـه بـې لـه کـوم قیـد او شرط نـه پـه ظاهـر کـې د روغـې جـوړې د فـوق العـاده کمېسـیون پـه سپارښـتنه د انقـلابي شـورا لـه خـوا، خـو پـه واقـع کـې د باندنیـو فشـارونو پـه وجـه آزاد شـوم.

مـا بانـدې یـې ډېـر تورونـه لګـولي وو؛ زه یـې پـه عیـن حـال کـې څـو دغسـې سـیاسي ګوندونـو تـه منسـوب کـړی وم چـې سره اور او اوبـه وو. یـو بـل تـور دا و چـې مـا د حکومـت د ړنګولـو لپـاره کوښـښ کاوه. زه یـې لویدیـځ تـه د تمایـل لرلـو پـه وجـه هـم نېولـی وم؛ خـو زه یـې پـه اصـل کـې د دې لپـاره نېولـی وم چـې زه پـه افغانسـتان کـې د شـوروي قـواوو لـه موجودیـت او پـه دې ډول د حکومـت لـه سیاسـت سره مخالـف وم. مـا پـه هېـواد کـې د دغـو قـواوو موجودیـت، پـه هـره نامـه چـې و، د خپلـو وطنوالـو او هـم د سیمې والـو د ناکراریـو او بدبختیـو سـتر عامـل ګاڼـه، او ګڼـم یـې. څنګـه چـې د یـو مـدني انسـان پـه توګـه دا زمـا قانـوني حـق و، د خـاد عاملینـو د هغـه د ذکـر نـه ډډه کولـه او دغسـې بـې اساسـه تورونـه یـې پـه مـا لګـول، چـې مـا پـرې قیـد کـړي. پـه هـر حـال، زمـا د بنـد پـه سر د پوهنتـون پـه سـویه، تـر څـه حـده پـه مـلي سـویه، او هـم پـه نړیوالـو حقوقـي حلقـو کـې، پـه

تېره د بشر د حقوقو د کمېسیون او د هغه د ځانګړي استازي ډاکټر فیلیکس ارمه کورا له خوا، او هم د بین المللي عفو سازمان، عملي موسسو او باندنیو نشراتي موسساتو له خوا د اعتراض آوازونه یو وخت بل وخت جګ شول، تر څو په پای کې زه د همدوی د فشار له امله بې له دې چې زما خلاصون د عفو په کوم فرمان کې راغلی وي، یا مې د اته کلن قید موده پوره کړې وي، ازاد شوم. زه دلته له دغو ټولو ښاغلیو او په عین حال کې له خپلې مېرمنې، مریم نه د زړه له کومې مننه کوم. وروستۍ زما د بند په ټوله موده کې، حتی زما د صریح هدایت په خلاف زما د خلاصون لپاره ډېرې ناکامې هلې ځلې وکړې او په هر حال د کورنۍ د ضعیف مالي توان سره یې هم زه په زندان کې د خوړو او دوا له ډډې ښه وساتلم او هم یې د کور او اولادونو په تنظیم او تربیې کې د قدر وړ وړتیا وښودله.

## د ښار سیاسي اوضاع

د کابل په ښار کې دغو څېړونو سمدلاسه زما پام ځانته واړوه، یو دا چې ګوندي او دولتي پېژندل شوي کسان په سرکونو کې نه لېدل کېدل. دوی د نوې لوړې حکمرانې طبقې په توګه له عادي خلکو نه جلا او په ګړندیو موټرونو کې چې شمېر یې تر پنځو کالو دمخه په څرګند ډول ډېر شوی دی، ګرځي. ځینې یې لا په ګولۍ پروفو موټرونو کې ګرځي چې د هر یوه بیه د نورو په قول اوولس میلیونو افغانیو ته رسیږي. په دې ډول دغو کمونستانو د ممتازو او اشرافو خصوصیت غوره کړی دی. اجتماعي برابري چې تر ډېره حده د افغاني جامعې خاصه وه، اوس په ښار کې ببخي له مینځه تللې. دغه حال په خاص ډول د مکروریانو په اوسېدونکو کې چې نړدې ټول یې د لوړ لیکو ګوندیان، حکومتي ماموران، او روسان تشکیلوي او د ښار د نورو برخو په اوسېدونکو کې په څرګند ډول لیدل کېږي. د مکروریانو اوسېدونکي نږدې ټول نوي عصري ممتازان او د ښار د نورو برخو خلک په عمومي ډول عوام، غریبان او کارګران دي.

بله دا چې له ځینو خلکو سره چې سړی په ښار کې مخامخ شي، دوی د پخوا په خلاف، د لیدو په وخت کې سترګې اړوي او ښکته ګوري. دغسې کسان د اوریدو په قرار د خاد جاسوسان دي. د جاسوسانو شمېر اوس په

ښار کې تر هر بل وخت نه زيات ښکاري او خبير کسان وايي چې په ښار کې به داسې ځای نه وي چې دوی به هلته نه وی. شريف او درانده کسان د وېرې او هم د دې لپاره چې نارام نه وي؛ کافي ګانو، هوټلونو، سينماګانو او داسې نورو ځايونو ته نه ورځي او په ښارونو او کوځو کې خلک د پخوا په خلاف له دېنه ډېره کوي، چې د سياست په باب خوله خلاصه کړي. خلک په ښار کې چوپه خوله اخوا دېخوا ګرځي، مګر دا چې آشنايان ووينې او روغبړ ورسره وکړي. کوم څوک چې يو ځای بل ځای ناڅاپه د شکايت نارې سورې پورته کړي، نور عکس العمل نه ښکاره کوي. خلک پوهېږي چې دغسې کسان جاسوسان دي او خولې لټوي؛ خو ددې په خلاف د کابل په ښار کې بل مهم خصوصيت په کورونو کې دننه يا په نورو مصئونو ځايونو کې د سياست په باب ګړېدل او تبصرې کول دي. پخوانی احتياط اوس د جاسوسانو د ډېروالي سره سره تر ډېره حده البته نه په پوره ډول، له مينځ نه تللی او په ځغرده ويل کېدای شي چې د کابل سياسي فضا د پنځو کالو دمخه په پرتله بدله شوې. دا تر ټولو مهم بدلون دی، چې تر اوسه ما حس کړی دی. پنځه کاله دمخه د اختناق ډېرې بدې شپې ورځې وې. د خاد له خوا نيول نيول ډېر شدت لاره. زندانونه له انسانانو نه ډک وو، په کوم ځای او کومو انسانانو باندې چې حکومت قبضه لرله، نه د چا سره مصئون و، نه د چا مال، حتی ډېر ځله داسې شوي چې د خلکو ناموسونه هم د خاد د عاملينو له خوا په زور او دسيسو سره بې عفته شوي دي. لږ تر لږه په ښار کې ترور حکومت کاوه. د ښار په هره برخه کې د سرتېرو (عسکرو) د نيولو لپاره لټون په شدت روان و.

کنډک کنډک عسکر به د دغه کار لپاره ګمارل کېدل. د ليکونکي کور چې د ښار په څنډه يعنې د خوشحال مېنې په دوهمه برخه کې واقع دی، څو ځله لټول شوی و. په لومړي وخت کې په ښار کې دننه حتی روسي عسکرو هم کورونه لټول، تر څو بيا له دغه کار څخه د ښاريانو د سخت مخالفت په اثر ډډه وشوه. د ښاريانو دغه ټينګ دريځ له روسانو او په واقع کې له دغه انساني ضد چلند سره د خلکو غوځ مخالفت ثرګند کړ. په هر حال له دوو مياشتو را په دېخوا د کابل حکومت د ملي روغې جوړې اعلان کړی، او تش په نامه يو اړخيز اوربند يې جاري کړی، په ښار کې د خلکو

او کورونو لټول بس شوي دي. خو اصلي خبره چې دغه نسبي ازاده فضا یې مینځ ته راوستې، د افغانانو مقاومت دی، چې روسان او د کابل حکومت یې په پای کې په دې متقاعد کړی، چې د قوې په استعمال سره بری ممکن نه دی.

## ګورباچوف او د حکومت په جلند کې نسبي نرموالی

دغه حقیقت هغه وخت د دوی له خوا وپېژندل شو چې ګورباچف د چرنینکو له مړینې وروسته د ۱۹۸۵ په مارچ کې د شوروي د یوازني سیاسي ګوند عمومي منشي، یعنې اعلی واکمن یا لوی تزار وګرځېده. داسې ښکاري چې ګورباچف چې د شوروي د نوي مخ راپورته کېدونکي تعلیم یافته او عصري توقع لرونکي نسل نماینده وي، غواړي دننه په هېواد کې ټولنیز او اقتصادي اصلاحات راوړي او ټولنه دموکراتیزي کړي، یعنې د دموکراسۍ په اصولو یې وچلوي. په دې ډول د پخوا په خلاف اوس هلته دا هڅه قوي ښکاري چې د شوروي باندنی سیاست باید له پراختیا غوښتنې نه لږ تر لږه د اوس لپاره واړوي، چې ډېر لګښت غواړي او د ننني سمونو ته متوجه شي. د همدغې هڅې له برکته د افغانستان په باب د شوروي اتحاد دریځ د بریژنیف د سیاست په پرتله توپیر پیدا کړی او اوس خبره دې ته رسېدلې چې شوروي اتحاد ځرګنده کړې چې غواړي خپل فوځ چې شمېر یې د مطبوعاتي خبرونو له مخې د یولک او پنځوس زرو په شاوخوا کې دی، او تر اوسه یې پنځوس زره عساکر په افغانستان کې تلف شوي دي، یوه ورځ له افغانستان نه وباسي او د کابل حکومت یې د نجیب الله په مشرۍ چې دی یې د بدنام او مخ تورن ببرک کارمل له ګوښه کولو نه وروسته واکمن کړی دی، دېته هڅولی دی چې ملي پخلاینې سیاست غوره او اعلان کړي، او ان د یو ائتلافي حکومت د جوړولو تر سرحده پورې هڅه وکړي. د دغه نوې تګ لارې له امله د افغانستان فضا تر ډېره حده نرمه شوې او په دغې فضا کې د حکومت او روسیې پخواني پېژندل شوي مخالفین په خصوصي غونډو کې له هر چا او حتی له ګوندیانو سره هم په ځغرده انتقادونه کوي. ځوک د ملي پخلاینې د سیاست پلوي دي او ځوک یې مخالفت کوي، او ډېر افغانان په ځغرده وایي چې د افغانستان د ټولو اساسي کشالو اصلي منبع

په دغه وطن کې د شوروي قواوو موجودیت دی. دوی ټینگار لري چې تر ځو دغه فوځ بې له کوم قید او شرط نه وتلی نه وي، ملي روغه جوړه د هغو دردوونکو پېښو په نظر کې نیولو سره چې په تېرو اتو کالونو کې په وطن کې پېښې شوې دي، نه معنی لري، او نه معنی لرلی شي، یعنې د باندنیو قواوو د موجودیت په حال کې، د ملي پخلاینې د بریالي کېدو امکان نشته. گوندیان او هغه کسان چې حکومت په یوه او بله نامه ځانته جذب کړي او په ظاهر کې د گوند غړي نه دي، په دې فکر دي چې ملي پخلاینه او د شوروي فوځ بېرته ستنېدل، یو په بل پورې تړلي دي او چې څومره ملي روغه جوړه زر عملي کېږي او په ولس کې رېښې ځغلوي، په هماغه اندازه د باندیني فوځ ستنېدل زر کېږي. په دغه ښار کې سره له دې چې د حکومت په لاس کې دی او د امنیتي، گوندي، اجتماعي او جاسوسي ارگانونو له لارې یې خاري، بیا هم د حکومت له موافقینو د مخالفینو شمېر ببخي ډېر دی، سره له دې چې ډېر شمېر افغانان اوس هم له احتیاط نه غلي دي. دغسې کسان چې شمېر یې ببخي ډېر ښکاري، په دې فکر دي چې د ملي روغې جوړې سیاست یوازې یو تاکتیکي یعنې غیر صمیمي او موقتي اقدام دی او نه ښایي چې دې ونېول شي او واقعي پرېکړه د جنگ جبهه کوي.

دوی په دې فکر دي چې حکومت د خپلو تېرو چلندونو په ناکامۍ سره اوس په ظاهر کې خپل غیرگوندي گوندیان دمخه کړي چې خلک وغولوي او خپل ملاتړي یې کړي او په دې ډول په ولس کې د ځان لپاره ریښه پیدا کړي. سربېره پر دې دوی استدلال کوي چې که حکومت په رښتیا یو ځل په ولس کې ریښه وموندله او د حکومت کولو توان یې یا په ځانگړي ډول یا په ائتلاف سره وموند، څوک به تضمین وکړي چې شوروي به خپل فوځ وباسي. له دې امله د حکومت دغه سیاست باندې عمومي باور هېڅ نشته، او عموم یې هسې دروغ بولي او څنگه چې حکومت تر اوسه د ملي مسایلو په بار ښکرور دروغ ویلي او اوس هم پرې صرفه نه کوي، د ملي روغې جوړې په باب د حکومت نارې سورې هسې بابیزه برېښي او حتی د خپلو گوندیانو ډېر شمېر یې هم هغه غیرعملي او غیر موثر گڼي.

## په ګوند کې دنني اختلافات

ډېر شمېر ګونديان هم د ملي روغې جوړې له چلند سره مخالف دي او همکاري ورسره نه لري. په دې باب خبره دومره جدي شوې چې اوازه ده چې نجيب الله د شوروي حکومت ته شکايت کړی دی چې خپل ګونديان يې د روغې جوړې د سياست په سره له هغه سره همکاري نه کوي.
که دغه آوازه رښتيا نه وي، د ګونديانو تر منيځ مخالفت کې خو هېڅ شک نشته. لومړی د خلق او پرچم د ډلو مخالفت دی، چې بيا دا بېل اوږد بحث غواړي. دلته دغومره ويل بس ښکاري چې دغه دواړه ډلې د غړيو د ترکيب په لحاظ په اصل کې دوه بېل ګوندونه وو، دوی د خپل ګوند له تاسيس څخه له ۱۹٦٥ نه وروسته سره بېل وو او په ۱۹۷۷ کې د شوروي په فشار سره متحد شول. څنګه چې دا يو فرمايشي او ميکانيکي اتحاد و، د غوايي له کودتا نه څو مياشتې وروسته بيا تجزيه شو او پرچمي ډله يې د حاکمو خلقيانو له خوا وځپل شوه؛ خو دغه مخالفت د ۱۹۷۹ په ډسمبر کې چې د شوروي فوځ له خوا د خلقيانو حکومت د حفيظ الله امين په سروالي په ډېرې بې رحمۍ سره نسکور شو او په ځای يې پرچميان د تورمخي او بدنام کارمل په سروالي حاکمان وګرځول شول، په تربګنۍ او دښمنۍ بدله شوه. دغه دښمني د امينيانو او کارمليانو تر منځ په خاص ډول جدي ده.

## د خلقيانو ډلګي او پلينومونه

په دې حال کې د دغو دواړو ډلو دريځ د ټولو موضوعاتو په باب، د ملي روغې جوړې د سياست په شمول، نه يوازې دا چې يو نه دی، بلکه مغاير دی. البته مخالفت په عمومي ډول څرګندی نه، بلکه د شوروي له وېرې د پردې لاندې دی، سره له دې چې له لوړو امينيانو نه پرته نور ټول خلقيان له پرچميانو سره په حکومت کولو کې شريک دي. په دې وخت کې چې حکومت د ملي روغې جوړې سياست جدي نيولی، ويل کېږي چې خلقيانو، يا لږ تر لږه تره کي خپلو خلقيانو، د سيدمحمد ګلاب زوی په مشرۍ ځانله ګوندي پلينومونه يعنې عمومي غونډې جوړې کړې او حتی د همدغو آوازو له مخې، ځانله يې ګوندي کانګره هم په پټه دايره کړې. د دغې کانګرې په پرېکړو کې، دوه مهمې يې را دي چې په يوې سره يې ځان له پرچم نه

بېل کړی او په بلې سره یې له حکومت نه غوښتي چې د حکومت د روغې جوړې له سیاست سره د دوی همکاري هغه وخت اهمیت او اغیزه لرلی شي چې حکومت خلقي بندیان چې شمېر یې تر سلو نه اوړي، خوشي کړي او د دوی ونډه په حکومت کې ډېره کړي. حکومت د حوت په دېرشمه یوولس تنه خلقي بندیان د ډاکټر شاولي په شمول چې هغه ته د امیني خلقیانو د مشر په حیث اهمیت ورکول کېږي، له بند نه ازاد کړل. د حکومت په دغه اقدام سره دغه فکر ریښه پیدا کړه چې نجیب الله د ډېرو عواملو له مخې غواړي ځان خلقي جناح ته نږدې کړي او د خپل سیاست د بریالیتوب په مقصد د هغوی همکاري لږ تر لږه د ګوند په دننه کې ځان ته جلب کړي، ځکه چې دوی په ګوند، په تېره په څارندوی او اردو کې په شمېر کې ډېر دي او د څارندوی رول د حکومت د سیاست په عملي کولو کې، چې د ګلاب زوی په تنظیم او زیار سره د یو بېل او ګذاریز قوت په حیث ټولو ته څرګند دی، مخصوصاً زیات دی. د تره کي خپلو خلقیانو او امیني خلقیانو نه وروسته د ډاکټر زرغون ډله راځي چې په اول سر کې د خلقي دموکراسۍ په سر له هو نورو سره مخالفه شوه او مشر یې ډاکټر زرغون د امین په سروالي کې له مینځه یووړل شو او ډلې یې وروسته په حکومت کولو کې له پرچمیانو او تره کیانو په مثاب.

## پرچمي ډلګۍ

له خلقیانو سره اختلاف د نجیب الله د مشکل یوه برخه ده. بله غټه برخه یې په پرچمیانو کې هغه اختلافات دي چې په خاص ډول د کارمل له ګوښه کېدو سره پیدا او جدي شوي دي. اوس پرچمیان د یوه مرکزي مشر په شاوخوا، چې هغوی د عمومي منشي په نامه یادوي، او اوس دغه شخص نجیب الله د خترمحمد خان زوی په ختنه احمدزی غلزی پښتون دی، نه ټولېږي. د پولټبیوریو یا سیاسي دفتر نږدې هر غړی ځانله ډلګۍ لري. کمونستي ایډیالوجي دوی ټول یوازې په یوه عمومي چوکاټ کې دننه کړي دي او نورې ملاحظې لکه شخصي، ژبنۍ، سیمه ایزې او داسې نورې ځینې کسان د یوه نسبتاً قوي، مجرب او ډینامیک شخص په شاوخوا ټول کړي او په دې ډول په ګوند کې ډلې او په ډلوکې ډلګۍ مینځ ته راغلي دي.

ډاکټر نجیب الله یعنې عمومي منشي یوازې په رسمي توګه، نه په واقعي توګه د ټول ګوند مشر دی. د دده غټه متکا شوروي ده، البته دا ډېر غټ امتیاز دی چې دی یې د نورو لویانو په مقابل کې لري. د ده په مقابل کې د پرچمیانو ډېر غټ ډلګی کارملیان یا د کارمل پیروان دي چې مخالفت یې د ۱۳۶۵ کال له پیل نه د کارمل له نسکورېدو او عمومي منشي توب نه د نجیب له هسکېدو نه شروع شوی او هغه وخت یې مشخصه بڼه غوره کړه چې کارملیانو چې په هغو کې د کابل د ښځو شمېر ښه څرګند او ډېر و، په بازارونو کې په مظاهرو پیل وکړ او د نجیب الله او شوروي پر ضد یې شعارونه ورکړل. البته مظاهره چیان په قوي سره زر تیت شول او یو څو یې ووژل؛ خو دغې پېښې په پرچمیانو کې درز ښه ژور او حقیقي کړ. په دغې پېښې سره بې له شک نه د کارمل په اشاره شوې وه، هغه په خپل لاس د خپل انتحار سند لاس لیک کړی چې عملي کېدل یې په وخت پورې تړلي برېښي. د کارمل مهم مرستیالان ورور یې محمود بریالی او اناهیتا راتب زاد [1] تر اوسه هم په خپلو وظایفو پاتې دي؛ خو له پخواني برم او اهمیت نه په څرګند ډول لوېدلي دي او یو شمېر کارملیان له ګوندي مقامونو ایسته کړل شوي او د ګوند په نولسم او شلم پلینوم یا عمومي غونډو کې مرکزي کمېټې ته یو شمېر نوې څېرې راوستل شوي دي، چې دغه ډلګي یې تر پخوا ډېر ضعیف کړي دي، خو ځنګه چې دوی زیاتره ښاریان دي او په پروپاګند او آوازو خپرولو کې لوی لاس لري او کارمل د ګوند یو موسس غړی دی او د خپلې حکومتې او ګوندي واکمنۍ په دوره کې یې په خاص ډول خپل پلویان لوړو مقامونو ته رسولي او رنګ رنګ فایدې یې ور په برخه کړي، دوی اوس هم په پرچمي جناح کې تر ټولو غټ ډلګي شمېرل کېږي. ویل کېږي چې دوی په دې وختو کې پټې غونډې کړي او خپله وفاداري یې یوازې کارمل ته مقیده کړې او د ګوند د رسمي سیاست یعنې ملي پخلاینې له سیاست سره یې خپل مخالفت څرګند کړی. دوی که په ظاهر کې له خپل ولي نعمت یعنې شوروي اتحاد نه شکمن شوي، په واقع کې په هغو د پخوا په څېر ټینګ

[1] اناهیتا د جوزا په شلمه په یوه ګوندي پلینوم کې متقاعده شوه، بیا وروسته هم دا او هم محمود بریالی له ګوندي واحدونو او مقامونو څخه ګوښه کړل شول.

ولاړ دي او بې د شوروي ملاتړ نه يې په افغاني ټولنه کې ژوند ممکن نه دی. دا چې کارمليان د ملي پخلاينې له سياست سره مخالف دي، په واقع کې يې معنی دا ده چې بايد شوروي قواوې د تل لپاره په افغانستان کې پاتې وي، تر څو دوی د يوې ډلې په توګه نه يوازې ژوندي پاتې شي، بلکه حکومت هم وکولی شي. په دې حساب د دوی سياست د افغان د ملي حاکميت منافي دی خو کوم هغه وحشت او استبداد چې د دوی له خوا شوی او دا چې دوی په ټولنې کې بې ريښې انسانان دي او د خپل ولي نعمت يعنې شوروي اتحاد له نظر نه غورځېدلي دي او په اردو او څارندوی کې د دوی رول ختم دی، که څه هم خاد د دوی د قوت ستر مرکز دی، او اصلاً نسبتاً بد اخلاقه شخصي ګټه او حکومتي موقف ميين بې پاسه ابن الوقتان او شارلتانان دي، که دننه په ګوند کې ډېر پلويان لري، د دوی ډله ييز اغېزمن رول هغه هم د شوروي د قواوو په غياب کې بالکل ختم دی او آينده يې تياره معلومېږي.

د يادونې وړ بل پرچمي ډلګۍ د سلطان علي کشتمند دی. دغه ډلګی په ظاهر کې د نجيب الله مشرتابه ته تابع دی او د ملي پخلاينې سياست په مخ بيايي؛ خو کشتمند ځانله بېل حساب لري. د ده پلويان ځينو وړو مليتونو ته منسوب دي او ستميان يې په ليکو کې ورننوتلي دي. دوی تر هر بل ډلګي نه زيات شوروي ته وفادار دي. د دغه ټکي په باب دلته دومره ويل په کار دي چې که کارمل د خپل يوه زوی نوم وستوک ايښی چې په روسيې کې ختيځ ته وايي، يا يې د خپل حکومت په وخت کې خپله يوه لور د سياسي ملاحظو له مخې يوه اپريدي ته ورکړې، کشتمند خپله يوه لور يوه روسي ته په مسکو کې نکاح کړې. دا موضوع چې د اسلام او افغاني عنعنې مخالفه ده، ممکن په نورو ځايو کې شخصي او بې اهميته وبلله شي، خو افغانانو ته د زغملو وړ نه ده. په افغاني حکمرانانو کې دا يو مشهور دود دی چې په خپله د باندنيو نه ښځې کوي، خپلې لوڼې هغه ته نه ورکوي. پښتانه په خاص ډول په دې ټينګ ولاړ دي، کشتمند به په دې خبر نه وي، چې حتی دننه په شوروي اتحاد کې همدغه اوس هم ازبکان، تاجکان او ترکمانان نه دي حاضر چې خپلې لوڼې روسانو ته ورکړي، په داسې حال کې چې خپل تعليم کړي يې له هغو نه ښځې کوي او دوی دغسې تاجکان په دغسې سپک نامه يادوي چې دلته يې له يادونې نه ډډه کېږي. البته

کشتمند بل منطق لري او هغه دا چې دی غواړي په هر قیمت چې وي د شوروي ملاتړ له ځان سره ولري، تر څو د هغه په برکت حکومت وکولی شي. دی تر اوسه هم له دغه ملاتړ نه پوره بهره من دی، ځکه دا یې اتم کال دی چې صدراعظم دی او د ده پیروان په څرګند ډول له حکومتي قوت نه په استفادې سره پښتني ضد کارونه کوي او خپل ډلګی پیاوړي کوي. کشتمند د شوروي اتحاد په مرسته اقلیتونو ته مالي مرستې ورکوي. دغسې مرستې هغو ته هم ورکول کېږي چې د مجاهدینو په صفو کې ورننوتي دي او یا په خپله ځانونه د مستقلو ګروپونو په نامه معرفي کوي. سربېره پر دې په کابل کې د «زحمتکښو هزاره ګانو مرکزي شورا» په نامه یوه شورا مینځ ته راوستل شوې. دغسې شورا چې لګښت یې د حکومت په غاړه دی، بل هېڅ ملیت نه لري. سربېره پر دې د کابلي شویو هزاره ګانو څخه یو غنډ وسله وال شوی و، چې هغوی په پکتیا کې په یوې جګړې کې له مینځه لاړل. کشتمند په اردو او ځارندوی کې کوم رول نه لري. سربېره پر دې چې دی د نورو په قول ګدي[۲] دی، په ټولنه کې څه چې حتی په خپله امامي هزاره ګانو او نورو شیعه ګانو ته هم بې اهمیته دی. د ده د تفرقه اچولو هلې ځلې، هغه هم په داسې وخت کې چې افغانستان له کلي مسایلو سره مخامخ دی، ډېرې پارونې کړي. په غالب احتمال د ده ډلګی به د شوروي فوځ په وتلو سره په هغه سرنوشت واوړي چې څه باندې سل کاله د مخه د افغان – انګلیس له دوهم جنګ نه وروسته د انګریزي فوځ په وتلو د محمد ولي (لاتي) یا «کوګناري زیو» په برخه شوی و.

تر دې هم نور واړه ډلګي د نوراحمدنور،غلام دستګیر پنجشیري او عبدالوکیل چې په نظر کې ونیول شي، د پرچمي د ډلې دننی حال او ورسره جوخت د نجیب الله مشکلات او د ملي پخلاینې د سیاست سرنوشت چې څه وخت د شوروي فوځ له افغانستان نه وځي، په نظر کې ښه مجسم کېدلی شي. یو ګوند چې په اضطراري او د جنګ په حال کې دغسې ټوټه ټوټه وي، که څه هم ټولې ټوټې یې د کمونستي مشترکې ایډیالوجۍ په چوکاټ کې

---

۲ ګدي هغه هزاره ته ویل کېږي چې د دري ژبې له ښکته کورنۍ سره یې خپښي کړې وي او خپل نسب یې له لاسه ورکړی وي.

دننه وي او له یوې ټوټې سره یې هم د ولس ملاتړ نه وي او هغه ګوند چې په خارجي قوت ولاړ وي او د دغه قوت د عسکرو د وتلو خبرې روانې وي او په مقابل کې د ملي مقاومت ډلې په عصري وسلو سمبال وي او ګذاریز قوت یې په حکومت باندې په پرله پسې ډول حواله کېږي؛ چېرته کولی شي چې د روغې جوړې سیاست له ګوندي او حکومتي کارمنو نه غیر په ملي سویه په مخ بوځي او د بري درشل ته یې ورسوي.

## د حکومت د ملي پخلاینې نوی سیاست

نجیب الله تېر کال د جدي په ۲۵ (جنوري ۱۵– ۱۹۸۷) د ملي پخلاینې سیاست اعلان کړ. ده د دغه نوي سیاست په څرګندولو سره دا هم په نظر کې لرله چې مخالف وسله وال مجاهد ګوندونه چې نرم او معتدل ګڼل کېږي، له ده سره مفاهمې ته حاضر شي. دغه ګوندونه د افغانستان ملي اسلامي محاذ د پیر سید احمد ګیلاني په مشرۍ، د افغانستان د ملي نجات جبهه د استاد صبغت الله مجددي په مشرۍ او د افغانستان حرکت انقلاب اسلامي د مولوي محمد نبي محمدي په مشرۍ دي چې دمخه د درې ګونو اتحاد په نامه یادېدل. دوه کاله دمخه د ۱۹۸۵ کال د مۍ په میاشتې دغو ګوندونو له نورو څلورو اسلامي مجاهدو ګوندونو سره اتحاد وکړ او هغه د افغانستان د مجاهدینو اسلامي اتحاد یا په لنډه توګه د اوه ګوني اتحاد، یا اتحاد په نامه یاد شو. هغه نور څلور اسلامي مجاهد حزبونه دا دي: د افغانستان اسلامي حزب د انجینر ګلبدنی حکمتیار په مشرۍ، د افغانستان اسلامي جمعیت د پوهاند برهان الدین رباني په مشرۍ، د افغانستان د ازادۍ لپاره اسلامي اتحاد د استاد عبدالرسول سیاف په مشرۍ او د افغانستان اسلامي حزب د مولوي محمد یونس خالص په مشرۍ دي. د اوه ګوني اتحاد ګوندونه په ټول ملک کې خواره او دومره نومیالي او قوي دي چې دلته د هغو په باب تفصیل ضرورت نه لیدل کېږي. یوازې دغومره به وویل شي چې دوی په افغانستان کې د غیراسلامي حکومت نفوذ نه مني او د افغان د مسلمان ولس د ذهنیت او ارادې په پیروۍ سره په ملک کې د اسلامي جمهوریت په تاسیسولو سره د اسلامي اصولو جاري کول غواړي. دوی د کابل حکومت یوازې د شوروي لاس پوڅی او غیراسلامي بولي، نو ځکه یې په ټینګه ردوي، په دې حساب

د حکومت د ملي روغې جوړې سیاست دوی ته هم د منلو وړ نه دی او په دغه ټکي باندې ټول ګوندونه سره یو دي. لکه څنګه چې د دوی مشرانو له مطبوعاتي مرکو نه چې له باندنیو راډیوګانو نه د حوت په نیمایي دوو هفتو کې خپرې شوې، څرګندیږي چې د دوی هر مشر په دې ټینګ دی چې باندینی پوځ دې بې له کوم قید او شرط نه له ملک نه ووځي او د هغه سروال دې د ملت له خوا غوره شي چې هغه به مسلمان او افغان وي.

خو د ملي حکومت تر جوړېدو نه دمخه د موقتي انتقالي دورې د حکومت سروال په سر د دغو ګوندونو د مشرانو تر مینځ اختلاف موجود دی. د هغو درېیو اعتدالي ګوندونو مشران په دې فکر دي چې دغه سروال په حاضر وخت کې له مخلوع پاچا محمدظاهرخان نه غیر بل څوک کېدلی نه شي، ځکه چې دی د دوی په فکر هغه یوازینی افغان دی چې د افغانستان د ملت لپاره د منلو وړ دی او خلک پرې ټولېږي او ارامېږي او له جنګ نه لاس اخلي چې دا په حاضر وخت کې د ملت لپاره تر ټولو اساسي او مهمه خبره ده؛ خو د هغو نورو ګوندونو مشران ظاهرخان ردوي او د رد غټ دلیل یې دا دی چې همدغه پاچا د هېواد ورونه د شورویانو په مخ خلاص کړل او داخلي کمونستانو ته یې د ملت د ارادې او غوښتنې په خلاف یوازې د شوروي له وېرې د فعالیت لار خلاصه کړه او په دې ډول یې د دغې اوسنی ملي فاجعې لپاره تر دې حده زمینه برابره کړه چې تر څو په پای کې یوه واره ګوند د شوروي په ملاتړ د ټول ملت د ارادې په خلاف په حکومت قبضه وکړه او د کمونستي اصولو په پیاده کولو بوخت شو. د دوی دوه نور انتقادونه دا دي چې پخواني پاچا تر اوسه پورې په افغانستان باندې د شوروي تېری نه دی غندلی او د جهاد په تحریک کې یې عملي برخه نه ده اخېستې. دوی ټول د نجیب الله د روغې جوړې سیاست د افغان ولس په مقابل کې دسیسه بولي او وایي چې څنګه چې د شوروي فوځ په تېرو اتو کالونو کې و نه شو کولی افغانان په زور لاندې کړي، دغه نوی چلند یې یوازې د موقتي تاکتیکي چال په حیث غوره کړی دی.

داسې شواهد شته چې د شوروي او کابل حکومتونو دواړو له هماغه پیل نه د دې هیله نه لرله چې دغه نوی سیاست به د وسله والو مخالفینو له خوا ومنل شي. د ولس او مخالفینو په مقابل کې چې د حکومت او شوروي

فوځ تر اوسه نهایت زشت چلند دلته په موقتي ډول له نظر څخه وغورځول شي، د وسله والو مجاهدو ډلو له خوا له حکومت سره د روغې جوړې او ائتلاف کول د هغوی له تسلیمی نه غیر بله معنی لرلی نه شي. په یوه ډېر صاف ساده حساب سره دغه راز ائتلاف په حقیقت کې په دې تمامېږي چې یو څو یا شاید هم نیمایي وزارتونه به د مخالفینو په نصیب شي، پیروان به یې بې وسلې شوي وي، په داسې حال کې چې حکومتي وسله والې قواوې، لکه د ملي دفاع وزارت، سرحدي ملیشیا، د خاد قواوې، څارندوی او د انقلاب د مدافعینو ډلې او نور وسله وال تنظیمونه به ټولې یا په عمده ډول د حکومت په لاس کې وي، چې شاته به یې عدلي محاکم، د ځوانانو تنظیم، د ښځو تنظیم او د کارګرو اتحادیې ولاړې وي چې دا ټول د رسمي ګوند تر تاثیر لاندې دي او د ټولو شاته به د شوروي قواوې موجودې وي.

## د ملي پخلاینې د سیاست اصلي غایه

د روسانو او کابل حکومت اصلي مقصد د روغې جوړې له سیاست څخه دا دی چې حکومت پههغه سره په ټولنه کې رېښې وځغلوي، یعنې په هغو خلکو کې چې په کلیو او بانډو کې اوسي او اوس هغه ټولې په څرګند یا پټ ډول د مجاهدینو په قبضه کې دي، ځانله ځای پیدا کړي. نوې لاره یې هماغه د تشت په نامه دروغي کمېسیونونه دي چې زیات شمېر مخصوصآ په دولتي ارګانونو او تصدي ګانو او عرفاني موسسو او حتی یو څو یې په ولایتي ښارونو کې هم جوړ شوي دي، چې د ټولو په سر کې د کابل د لوړ فوق العاده کمیسیون د په اصطلاح ملي جبهې مشر د عبدالرحیم هاتف په سروالي مینځ ته راغلی دی. کوښښ کېږي چې په ظاهر کې غیر متعهد او بېطرف اشخاص چې په خپل محل کې نوم او نفوذ لري، په غسې کمېسیونونو کې جلب شي. حکومت ادعا کوي چې دغو کمېسیونونو ته یې په ډېرو برخو کې مثلآ د افرادو تر مینځ، د قوتونو تر مینځ د شخړو او لانجو په فیصله کولو، د بندیانو په ازادولو او داسې نورو ټولنیزواو اداري چارو کې واک ورکړی دی. سربېره پر دې حکومت د همدې کمېسیونونو له لارې د شوروي اتحاد بلاعوضه د خوراکي موادو مرستې لکه اوړه، وریجې، بوره، صابون، غوړي او نور او په همدې ډول طبي مرستې خلکو ته وړیا ورکوي. حکومت ته دا پته

لګېدلي ده چې کوم هغه افغانان چې دغو «کميسيونونو ته يا دغسې نورو اجتماعي تنظيمونو ته لکه هغه تش په نامه محلي، ايالتي او مرکزي شورا ګانو ته چې د په اصطلاح دولتي ارګانونو لپاره د ولس له خوا د حکومت په قول «په ازاد او دموکراتيک» ډول انتخابېږي د مخالفو مجاهدو ګوندونو له خوا په بده سترګه کتل کېږي او له دغسې کسانو څخه ځيني لا ترور شوي هم دي. د حکومت سنجش دا دی چې دغسې کسان به ورو ورو له مجاهدينو نه جلا شي او د حکومت ليکې به پياوړې کېږي او حکومت به وکولی شي په دغه طرز او نورو وسايلو سره خپل نفوذ په ولس کې خپور کړي، تر څو يوه ورځ د دغسې خلکو له بانفوذو لويانو او د پخوانيو حکومتونو له يو شمېر بيوروکراتانو او هم د يو شمېر وړو چپي ډلګيو له لويانو د مشرانو نه يو راز ائتلافي حکومت جوړ کړي. حکومت لا دمخه د حاجي محمد څمکني د انقلابي شورا د رئيسه هيئت سرپرست، عبدالرحيم هاتف د ملي جبهې سروال او يو شمېر نورو پخوانيو وزيرانو په هسک کولو سره په دغسې کار پيل کړی دی. د شوروي او کابل حکومت د محاسبې له مخې به د دغې ټولې پروسې په برياليي بشپړېدو سره تر دې حده په پښو درېدلی شي چې هغه به د شوروي فوځ د تدريجي بېرته ستنېدو سره هم د داسې يو قدرت په شان ګرځېدلی وي چې يا به په يوازې ځان يا له نورو قوتونو او اشخاصو سره په ائتلاف حکومت وکولی شي. نو دغه محاسبه د حکومت د روغې جوړې د سياست په برياليي کېدو پورې تړلې ده. اوس نو دا پوښتنه کېږي چې دغه سياست به کله بري ته رسېږي؟

## د ملي پخلاينې سياست او وسله وال مجاهدين

د ملي پخلايې سياست تر اوسه برياليی شوی نه دی او شواهد ښيي چې د برياليي کېدو امکان يې په آينده کې هم لږ تر لږه اوس نه ښکاري. حکومت له چا سره روغه جوړ کوي؟ له اولس او وسله والو مخالفينو سره. وسله وال مخالفين په ټول ملک کې يو عظيم متشکل او په عصري وسلو سمبال قدرت دی، چې له روسانو او حکومت سره يې د مقاومت وسپنيزه اراده او وړتيا ټولو ته ثابته کړې او که مبالغه و نه شي، د ټول ملک په سلو کې اتيا برخې يې په شريکي توګه په لاس کې دي. دوی د ډېرو دلايلو له

مخې چې له یادولو نه یې دلته ډډه کېږي، د دې توان لري چې د روسانو د عظیم قدرت په نظر کې نېولو سره دننه په افغانستان کې د لسونو او لسونو کالو لپاره د هغو په مقابل کې د ملي مقاومت بیرغ رپانده وساتي، په داسې حال کې چې دغسې قدرت د کابل له رژیم سره نه لېدل کېږي. په واقع کې مجاهدینو همدا اوس هم روسان او حکومت په افغانستان کې په گونډو کړي. دوی له حکومت سره د روغې جوړې سیاست په کلکه رد کړی او لکه څنگه چې یې دمخه یادونه وشوه، وایي چې روسي فوځ دې بې له کوم قید او شرط نه یوازې د لوجستکي ضرورت په پام کې نیولو سره ووځي؛ نو تر هغه ځایه چې په وسله والو مجاهدینو پورې اړه لري، د روغې جوړې سیاست لا دمخه ناکام دی او د کامیابېدو نښانې یې په آینده کې هم نه معلومېږي.

په دې حال کې عجیبه نه بریښي چې حکومت د روغې جوړې سیاست په ډېر جدي ډول ولس ته متوجه کړی دی. ولس یا ټولنه البته یو مبهمه کلیمه ده. د موضوع په ارتباط دلته دومره ویل کېږي چې ولس د اجتماعي ډلگیو یو نامعین او سیال ترکیب دی. د غوایي تر کودتا نه دمخه سیاسي گوندونه موجود او فعال وو، خوهغه ټول، مخصوصاً د سردار داود خان په وخت کې د جزا قانون د تدوین نه وروسته غیرقانوني او پټ وو، تر ضربې لاندې ونیول شول، د اگسا کام او خاد له لارې یې د هغو پېژندل شوي غړي یا ووژل، یا بندیان کړل، یا یې فرار ته مجبول کړل او یا یې وروسته له دې چې په توبه کولو مجبور کړل؛ په خپل یوازني رسمي گوند کې ننویستل. یوازې هغه اسلامي گوندونه چې یادونه یې دمخه وشوه، له وطن نه د باندې د کابل رژیم په ضد ولاړ او تر پخوا لا فعال او پیاوړي شول. د نجیب الله په وخت کې یو شمېر چپي او د دوی په اصطلاح دموکراتیک ډلگي له رسمي گوند سره یو ځای شول چې په هغه کې د ظاهر افق ډلگی تر نورومهم دی. په بل عبارت دننه په اوسنی افغاني ټولنه کې له رسمي گوند او حکومت او یو شمېر نورو اجتماعي او صنفي رسمي تنظیمونو نه غیر نور څرگند او ښکاره تنظیمونه نشته او جامعه د افرادو له واحدونو څخه جوړه ده، نه د پخوا په شان د تنظیمونو، هغه هم د سیاسي تنظیمونو له واحدونو څخه. د حکومت کوښښ په ځانگړې توگه د روغې جوړې د سیاست له اعلان نه وروسته په دې کې دی چې د دغو افرادو گونډه او مهم کسان

جلب کړي او پاتې ولس تر خپل نفوذ او تابعیت لاندې راولي.

## د ملي پخلاینې سیاست د تحقق په لور نوي اقدامات

حکومت د همدغه منظور لپاره یو لړ کارونه کړي چې دمخه یې یادونه وشوه. په هغو سربېره د یادونې وړ نور کارونه چې یې کړي، د هغه فرمان ایستل دي چې د هغه په موجب حکومت هغه کورونه او ملکیتونه خپلو مالکینو ته بېرته ورکوي چې له خارج نه ستنېږي. د مخ توري کارمل د حکومت په دوره کې د هر هغه چا ملکیت ضبطېده چې خارج ته به یې د سر او ځان له وېرې کډه کوله. دغسې ملکیتونه په تېره د هستوګنې کورونه د کابل په ښار کې ډېر دي، چې زیاتره یې خاد نیولي دي. بل غټ اقدام چې حکومت یې په نظر کې لري، د داسې فرمان ایستل دي چې د هغه په موجب به د ځمکو اصلي او نهایي نصاب له دېرشو جریبو ځمکو نه سلو جریبو ته لوړ شي[٣]. تر اوسه د ځمکو د اصلاحاتو مهم ټکي دا وو چې یو مالک به له باغونو نه پرته کولی شوه یوازې دېرش جریبه ځمکه ولري او مازاد به یې بزګرو ته د کورني په سر شپږ جریبه ځمکه ورکول کېده. نوی فرمان به چې د باوري منبع په خوله زر ووځي د مځکو شوي اصلاحات چې لا دمخه په خپله د بزګرو او مجاهدینو له خوا ناکام شوي او د ناراميو یو عمده عامل ګڼل کېږي، ډېر ګډوډ کړي او زیاتې اداري او حتی نوې ټولنیزې ستونزې به رامینځ ته کړي.

## د سیاسي بندیانو ازادول

د ولس د جلبولو په منظور بل کار چې حکومت د نوي روغې جوړې د چلند د غوره کولو په وخت کې کړی، د بندیانو تدریجي خوشې کېدل دي. د بندیانو په باب به ځانله یوه لیکنه وشي. دلته دغومره لیکل په کار دي چې تر اوسه (د حوت ۳۰) له بندیانو نه ممکن په سلو کې شل آزاد شوي وي،

---

[٣] دغه فرمان د جوزا په ۱۷ ووت. د هغه په اساس د ځمکې د مالکیت نهایي نصاب سل جریبه اعلی ځمکه یا د هغه معادل شوه، کومې هغه ځمکې چې پخوا بزګرو ته ورکړل شوي د هغوی به وي او ځمکې به د مال په حیث د شرع له مخې وراثانو ته د انتقال وړ وي.

په داسې حال کې چې ممکن د بندیانو عمومي شمېر په ټول ملک کې چې د ١٣٦١ کال په پای کې په یوه وخت کې د پنځوسو زرو په شاوخوا کې وو، اوس دېرش زرو ته ښکته شوي وي. په هر حال له دغو اوسنیو ازاد شویو بندیانو ممکن په سلو کې شپېته خادستان او ګوندیان وي. دا چې حکومت دې ته عمومي عفوه وایي، اعتبار نه لري. یوازې هغه وخت دې ته عمومي عفوه ویل کېدلی شي چې ټول بندیان آزاد کړل شي او یوازې هغه وخت له دې ناحیې نه په ولس کې روغ نیتي راتلی شي چې حکومت اعدام بند کړي، هېڅ فرد بې له ثقه شواهدو نه بندي نه کړي، له تورنو سره قانوني چلند وشي او له غیر انساني او نهایت سختو جزاوو له ورکولو نه د اقرار د ترلاسه کولو په منظور ډډه وشي او هغه قانون چې د بندیانو په باب په محبسونو کې د مجازاتو د تطبیق په باب په ١٣٦٢ کې ایستل شوی، تطبیق شي، په داسې حال کې چې د دغه قانون هېڅ یوه ماده چې د بندي په ګټه ده، تر اوسه نه ده عملي شوې؛ خو دا هغه څه دي چې دغه حکومت یې د خپلې سابقې، ماهیت او دننه په ګوند کې د مخالفت په وجه لږ تر لږه په نږدې آینده کې نه شي کولی؛ خو حکومت اوازې خپرې کړي چې په زندانونو کې به یو بندي هم پاتې نه شي. داسې ښکاري چې حکومت یوازې هغه بندیان جوپه جوپه خلاصوي چې عسکر یې کړي او د جنګ جبهو ته یې واستوي.

### د حکومت دیني سیاست او تبلیغات

حکومت د ولس د تېر ایستلو او په خلکو کې د اعتماد د پیدا کولو په هڅه د ادیانو د ساتنې او د محافظې ناري سورې په ډېر شدت سره شروع کړې دي. د غوایي د کودتا نه تر دې دمه د ادیانو او دیندارو افغانانو په باب ډېر څه چې زیاتره یې دردونکي دي، خو دلته به په دې باب یوازې د کلي حکمونو په یادولو اکتفا وشي.

د خلقیانو د حکومت په دوره کې چې دوی ته حکومت په ډېره آسانۍ لاس ته ورغلی و، اسلام سمدلاسه د کارل مارکس د فکر له مخې په عمل کې «د تریاکو په شان تحذیرکوونکی عامل وګڼل شو».

حکومتي او رسمي میتېنګونه او غونډې چې د عنعنې له مخې په

افغانستان کې د کلام الله مجید د مبارکو ایاتونو په لوستلو پیل کېدلې، په ملي او انټرنیشنلیستي یعنې کمونیستي ترانو او آهنګونو سره شروع کېدلې او پای ته رسېدلې. د ګوند د واکمنو په نظر دا د فکري او کلتوري انقلاب شروع وه. په رسمي او ګوندي خپرونو کې د ماټریالیزم په بنسټ مبنا لیکونو ته زوره ورکړه شوه. معکوساً مقدس او مذهبي اماکن سمدلاسه د حکومت له نظره ولوېدل. په دې برسېره حتی د هغو مسلمانانو ژوند له خطر سره مخامخ کېدو، چې دیني مناسک او مراسم به یې په ځای کول او ذکرونه او عبادتونه به یې کول. ډېر روحانیون له همدې امله بندیان او له مینځ نه یوړل شول. یوازې دا نه و، یو شمېر ږیري والا چې روحانیونو ته منسوب نه وو، بلکې د رواج له مخې یې ږېرې پرې ایښې او غیر سیاسي عادي مسلمانان وو، هم له مینځه یوړل شول. د یوې باروي منبع په قول د روحانیونو له مینځه وړل د روسي مشاورانو په هدایت کېده، سربېره پر دې ۸٦ تنه هغه سیاسي بندیان چې «د اخوانیانو» په نامه د داود خان په دوره کې د محاکمو له خوا د حبس په بېلو بېلو مودو محکوم شوي وو، هم په ډله ییز ډول د ۱۳۵۸ کال د جوزا په اتمه او دېرشمه اعدام شول، په داسې حال کې چې حکومت د هماغې دورې جنایي بندیان په ډېر نمایشي ډول یو کال دمخه ازاد کړي وو. حکومت په دې ډول په عمل کې د روحانیونو او اسلام په ضد بې له دې چې په رسمي ډول یې اعلان کړي وي، په دوام لرونکې مقابلې لاس پورې کړ او د ترکیې د اتاتورک داستان یې دلته شروع کړ. په افغانستان کې بل هېڅ حکومت په هېڅ وخت کې تر دې حده له اسلام اومسلمانانو سره مخالفت نه و کړي. د حکومت او روحانیانو تر مینځ مخالفت تر آخري ممکن حد پورې رسېدلی و، خو د حکومت دغه مخالفان لا تنظیم شوي نه وو او ډله ییز ګذاریز دریځ یې غوره کړی نه، چې، د ۱۳۵۸ کال په جدي کې شوروي خلقي حکومت د فوځ په زور نسکور کړ او په ځای یې پرچمي حکومت ودروه. د افغانستان مسلمانان او روحانیون له نوې فاجعې سره مخامخ شول. د شوروي فوځ برید د افغان مقاومت لپاره سمدلاسه دوه نور بعدونه اضافه کړل: د داخلي ملحد حکومت سره له مقابلې نه علاوه، له خارجي فوځ سره او له کفر سره مبارزه. دغسې جنګ له ٦۱ کالونو نه وروسته بیا په افغانستان کې حتمي شو او اوس د عادي ولسي مسلمانو افغانانو په نظر کې یو نوی ملحد کافر یرغلګر

روس پـه خبـره کـې څرګنـد شـو چـې د ببرحمـی او الحـاد او کمونیـزم قصـې یـې لا دمخـه د مهاجـرو بخارایانـو لـه لارې پـه ټـول افغانسـتان کـې خپـرې شـوې وې او لـه هغـو نـه یـې سـخته کرکـه لرلـه. د همدغـه حقیقـت پـه پیژندلـو سره و چـې پرچمـي حکومـت او بـې لـه شـکه روسي مشـاورانو سمدلاسـه پـه هماغـه اول سر کـې د خلقـي حکومـت د سیاسـت پـه خـلاف نـوی تېرایسـتونکی مذهبـي سیاسـت غـوره کـړ او حکومـت ځـان د مسـلمانانو او اسـلام حامـي اعـلان کـړ. د دغـه سیاسـت پـه بنـا یـې د ۱۳۵۸ کال د حـوت دریـم سـتر پاڅـون چـې پـه مخکـې شـپه کـې یـې پـه کندهـار او کابـل کـې د اللـه اکـبر نـارې د مسـلمانو ښـاریانو لـه خـوا اسـمان تـه پورتـه شـوې وې، او لیکونکـی هـم پـه کـې برخـه اخیسـتې وه، او پـه زرګونـو مسـلمانانو د ښـار پـه بېلابېلـو برخـو کـې د حکومتـي او روسي عسـاکرو د ګذارونـو پـه مقابـل کـې د اسـلام شـنه بیرغونـه رپانـده سـاتل او د ځـان پـروای یـې نـه کولـه. نـوي حکومـت خپـل مذهبـي  سیاسـت تـه نـوره پـه ظاهـر کـې اسـلامي بڼـه ورکـړه او د پراخـو او شـدیدو تبلیغاتـو نـه سربېـره یـې پـه یـو لـړ مشـخصو کړنـو لاس پـورې کـړ. پـه شـمېر مذهبـي ټولنـې یـې جـوړې کـړې، چـې پـه هغـو کـې د اسـلامي شـئونو ریاسـت و، کـوم چـې بیـا وروسـته پـه وزارت بـدل شـو. پـه دې لـړ کـې ډېـر تـازه اقـدام د اسـلامي مطالعاتـو د مرکـز پرانسـتل دي، چـې د اسـلامي موضوعاتـو لپـاره د څېړنـو موسسـه بللـی کېـږي. حکومـت د لومـړي ځـل لپـاره مکـې تـه د حاجیانـو او کربـلا تـه د زایرینـو سـفرونه تمویـل کـړل، یـو شـمېر نـوي جوماتونـه یـې جـوړ او ځینـي پخـواني جوماتونـه یـې ترمیـم کـړل. پـه همـدې ډول د ښـار ټولـو جوماتونـو لپـاره ضروري شـیان تهیـه شـول او د جوماتونـو او تیکـه خانـو امامانـو او خطیبانـو پـه شـمېر او معـاش کـې څرګنـد ډېروالـی راوسـتل شـو. پـه دې ډول بېخـي ډېـر شـمېر مذهبـي عالمـان، چـې یـو شـمېر یـې د وینـاوو لـه مخـې ګوندیـان او مارکسسـتان دي، د دولـت مسـتخدمان شـوي دي. پـه همـدې ډول حکومـت پـه ډېـرې زړورتیـا سره د شـیعه ګانو(هـم د ولـسي امامیانـو او هـم اسـماعلیانو لپـاره) نـوې تکیانـې جـوړې کـړې او پخوانـۍ یـې ورتـه ترمیـم کـړې او د هغـوی د مذهبـي امامانـو لپـاره یـې معاشـونه مقـررل کـړل. حکومـت دغـسې ورتـه اسـانتیاوې حتـی د هندوانـو او سـیکانو د مذهبـي اماکنـو یـا درمسـالونو لپـاره هـم برابـرې کـړې. سربېـره پـر دې ګونـدي مشرانـو ې پـه لومـړي سر کـې یـوازې پـه دغـه اقـرار اکتفـا کولـه چـې دوی د مسـلمانانو

زامن دي، په دې تازه وختو کې ثرګنده کړه چې دی په خپله مسلمانان دي. دوی په دې ډول له دغې مقولې نه په استفادې سره چې وايي «شرع ظاهره ګوري» په ظاهر کې اسلامي عبادتونه په ځای کوي او د مسلمانانو پېښې کوي اوغواړي پاک زړي مسلمانان وغولوي. دا سمه ده چې وويل شي، لکه څنګه چې حکومت يې په پرلپسې ډول د تبليغ په توګه د خلکو مخې ته وړاندې کوي چې «دغومره پيسې دغه حکومت د مذهبي تاسيساتو په جوړولو، ترميمولو او مذهبي عالمانو ته د معاش په ورکول لګولي، نورو حکومتونو شايد په يوې پېړۍ کې هم نه وي لګولي» خو له دې سره جوخت بايد وويل شي چې يو خو دا د موضوع يوه برخه ده او بله دا چې حکومت په دغې برخې کې هم صميمي نه دی او دغه کار يې يوازې د تاکتيک له مخې د لنډې مودې لپاره غوره کړی دی. په مذهبي ډګر کې د موضوع بله خوا دا ده چې افغاني ټولنه له پنځه دېرش زرو سيکانو او هندوانو نه پرته اسلامي جامعه ده او د اسلامي اساساتو او عنعنې او د افغانانو د ثرګندې توقع په خلاف د روسانو له خوا ملحد کمونستان پرې واکمن ګرځول شوي دي، حال دا چې د اسلام او مسلمانانو په تقاضا د دغې جامعې سروال (مشر) بايد مسلمان وي، لکه څنګه چې په تېرو ديارلسو پېړيو کې چې د اسلام د دغه ملک رسمي دين و، حال همدغسې دی. دا هم بايد هېره نه شي چې دغه کمونستي حکومت په کابل کې په خپلې ګوندي اجتماعي موسسې کې خپلو کدرونو او فعالينو ته د ماديت او الحاد درسونه ورکوي چې هغوی بيا د ګوند نور غړي په ګوندي حوزو کې ماديون او ملحدان ګرځوي. د ګوند غړي نږدې ټول ماديون او ملحدان دي. سربېره پر دې دغه حکومت (او خلقي حکومت هم) په معارف کې په پراخه توګه د ديالکتيکي ماديت او تاريخي ماديت له روحيې سره سم ارزښتونه او فکرونه ځای کړي او تدريسوي يې. په دې برخه کې د يادونې وړ بل غټ ټکی د شوروي اتحاد او نورو سوسيالستي هېوادونو ته د تحصيل په غرض د ځوانانو استول دي. هلته د تحصيل څانګه چې هر څه وي، د هغوی د زده کړې په نصاب کې د ديالکتيکي ماديت او تاريخي ماديت او نور سوشلستي مضمونونه چې مرکزي ټکی يې د خدای له موجوديت څخه انکار دی، شامل دي. د دغو ځوانانو زياتره، نه ټول، به ملحدان وي، او شايد د غوايي له کودتا نه تر اوسه تر شلو زرو نه زيات

ماشومان او ځوانان دغو ملکونو ته د تحصیل لپاره استول شوي وي. دننه په هېواد کې د ځوانانواو ښځو سازمانونه که څه هم ټول غړي يې د گوند غړي ندي هم د الحاد په روحيې سره روزل کېږي. په دې ډول دا هم د حکومت او هم د شورويانو منظر پروگرام دی، چې افغان تعليم يافته نسل ماديون او کمونستان کړي، يا لږ تر لږه يې په دغو ارزښتونو سره وروزي او په دې ډول په خپله محاسبې سره د آينده حکومتونو اورگانونه هغه ته او د دوی په اصطلاح «مترقي کسانو» ته په لاس ورکړي او اسلام په افغانستان کې په اساسي ډول تخريب کړي. په همدې لړ کې حکومت د اسلام د تخريب په منظور د خپل کمونستي کولو پروگرام تر څنگه د هندويزم په پياوړي کولو پسې پښې لوڅې کړې دي چې د هند حکومت له ځان نه خوښ کړي. په بل عبارت اوس تر هر بل وخت نه زيات اسلام په افغانستان کې له دغو ناحيو څخه په خطر کې دی.

سربېره پر دې هغه څوک چې حکومت د دين په ډگر کې کړي، لکه چې دمخه يې په تفصيل سره يادونه وشوه، تاکتيکي او د لنډې مودې لپاره دي. هر هغه څوک چې د روسي کمونيزم، د روسانو د سياسي سلوک او په منځنۍ آسيا کې د روسانو د استعماري تاريخ په باب معلومات لري، په دې ښه پوهېږي چې روسي کمونستان او په واقع کې ټول کمونستان خپل هدف ته د رسېدلو په منظور له هر ممکن تاکتيک او وسيلې نه کار اخلي. په بل عبارت د دوی لپاره هدف چې دوی يې د ځمکې په سر د کمونستي ټولنې جوړېدنه بولي، په ټولو حالاتو کې ثابت او نه اوړېدونکی دی او يوازې هغه ته د رسېدلو لارې چارې تغييرمنونکي او بدلېدونکي دي. دا چې په واقعيت کې د دوی د دغه فکر په ځای د دوی واقعي هدف د ټولنې د سياسي واک په خپل لاس کې ساتل او انحصارول دي، په دې باب دلته څه نه ويل کېږي. دلته همدومره ويل بس دي چې خلقي حکومت چې د قدرت په نېشې مس وو، دين او اسلام په عمل کې شاته وغورځول، خو څه وخت چې دغه چلند ناکام شو او د کمونستانو واک له خطر سره مخامخ شو، پرچمي کمونستانو هغه سياست بېخي واړوه او ننداري يې جوړې کړې او په دې ډول يې په جدي ډول پيل وکړ چې موجود مذهبي عالمان د پيسو او دولتي مقامونو له لارې تنظيم او د ځان تابع وگرځوي او د هغو په وسيله خپله واکمني په

ځای کړي.څخه وخت چې د دوی واکمنی ټینګه شي، یعنې هغه چې د دین، مذهبي عالمانو او ورحانیونو لپاره د دوی اساسي ضرورت له مینځه لاړ شي، بیا به حجتیان وي، نه څمکنیان او نه د اوقافو او نه اسلامي شئونو وزارت او داسې نور مذهبي تاسیسات. او یا به دوی ټول موجود وي، خو هغه ټول به د کمونیزم او انقلاب په خدمت کې وي. ممکنه نه ده چې هغه څه چې اوس یې حکومت له دین، مذهبي عالمانو او روحانیونو سره کوي، د تل لپاره وکړي. د دغې وینا د تائید لپاره دې بخارا په نظر کې ونیول شي. بخارا د کمونستانو له حاکمیت نه دمخه خورا ډېر جوماتونه لرل، ډېرې مدرسې یې لرلې، ډېر مذهبي عالمان او روحانیون یې لرل، مسلمانان یې لرل، په شرقي مسلمانې نړۍ کې بخارا د اسلام ستر مرکز و، بخارا د بخارا شریفې په نامه یادېده. اوس ورته وګورئ، هلته په ټول ملک کې یوازې څو جوماتونه هغه هم د رسمي ننداریې لپاره خلاس دي او خلک یې دومره د دیني کتابونو په ارمان دي، چې کوم هغه ازبک او تاجک عسکر چې په اول سر کې له روسي عسکرو سره افغانستان ته راغلي وو، په قرآن شریف او وظیفاتو پسې په اصطلاح مړه وو. ډېرو یې په ډېرې تلوسې سره هغه پیدا کړل او په پټه یې له ځان سره یوړول.

په مجموع کې د حکومت هغه ډېرې هلې ځلې چې د اسلام او مذهبي عالمانو، روحانیونو په هکله یې کړي او هغه رول او اهمیت یې چې د مذهبي عالمانو او روحانیونو ته ور په برخه کړی، په هغو سره یې یو لږ شمېر مسلمانان جلب کړي او څرګند دیني مخالفت یې د خپل حاکمیت په ساحه کې یا له مینځه وړی یا کم کړی؛ خو د حکومت دغه چلند وسله والو مجاهدینو باندې هېڅ تاثیر نه دی کړی. برخلاف په هغو کې یې د کفر او کمونیزم په ضد احساسات لا هم شدید کړي دي. دغه حقیقت د اسلامي ګوندونو له ډېروالي او له کمونیستانو سره د هغو د ائتلاف د نه کولو او د ملي پخلاینې چلند له ردولو څخه ښکاري. تر دې هم مهمه دا چې د غوایي له کودتا نه وروسته په ټول هېواد او حتی په ټولې سیمې کې اسلامي او په عمومي ډول مذهبي احساسات ډېر شدید شوي، مسلمان او حتی سیکان او هندوان هم تر پخوا زیات دیني مناسک اجرا کوي. تصوفي ذکرونو ته هم توجه زیاته شوې او ویل کېږي چې تصوف د جنګي جبهو په ځینو جبهو په

ځینو مجاهدینو کې هم ښه نفوذ کړی دی. دا او داسې نورې نښانې چې په نظر کې ونیولی شي، سړی دې نتیجې ته رسېدلی شي چې د شوروي د فوځ له وتلو وروسته به نه یوازې په ولسي خلکو کې، بلکې په دولتي مامورانو باندې هم مذهبي ځپې ښې خورې شي. نه یوازې کمونیستان، له هرې ډلې چې وي، بلکې له سرلوڅي او په عصري جامو کې ملبس مسلمان افغانان به هم له سخت حال سره مخامخ شي، لکه څنګه چې په وړه پیمانه د سرزوري امان الله خان له نسکورېدو نه وروسته همدغسې وشول.

## د خصوصي متشبثینو خوښ ساتل

د حکومت د ملي پخلاینې د سیاست له مخ کې بېولو سره جوخت د خصوصي متشبثینو او ملي پانګوالو تشویق ته هم توجه کړې. کوښښ کوي چې دوی ته هم د مذهبي عالمانو او روحانیونو په شان امتیازات ورکړل شي، یا لږ تر لږه دوی د خپلې پانګې له مصئونیت نه ډاډه اوسي، چې هغه بې له وېرې نه په کار واچوي او د باندې یې وانه ستوي. د کال په سر کې یې د همدې مقصد لپاره د لومړي ځل لپاره د خصوصي متشبثینو سرتاسري ننداره ییز کنفرانس جوړ کړ. دوی ته د داود خان د وخت په شان اوس کرېدیتونه ورکول کېږي او په صنایعو کې پانګې اچوونکو ته دغه امتیاز بیا ور په برخه شوی چې دوی لومړی پنځه کاله له ټکس ورکولو نه معاف شوي دي. نور څه له دوی سره تر اوسه نه دي شوي، خو حکومت په الفاظو کې دوی ډېر هڅوي چې خپل تولیدات د هېواد په ګټه زیات کړي تر څو له جنګ او په واقع کې له کودتا نه را پیدا شوي خنډونه چې د ملي صنایعو په زیانمن کېدو او د سوداګرۍ په رکود او مخصوصاً د ملي پانګې په فرار سره پیدا شوي وو، له مینځه لرې شي. کافي ده وویل شي چې حکومت په اقتصادي او په تېره صنعتي ډګر کې هغسې اقتصادي چلند غوره کړی چې لومړی په شوروي روسیه کې د جنګ له کمونیزم نه وروسته د نپ یا «نوي اقتصادي سیاست» په بڼه کې غوره شوی و، تر څو هغه ورانې او زیانونه له مینځه لاړ شي چې د صناعت او سوداګرۍ په برخه کې له کودتا نه وروسته مخصوصاً د خلقي حکومت په دوره کې پیدا شوي وو. طبیعي ده چې دغسې کمونستي ګوند هم په صناعتي او اقتصادي ډګر کې دغسې پانګه والي چلند په موقتي

ډول غوره کوي، تر څو تولیدات زیات شي او همدا چې تولیدات په کافي اندازه ډېر او متنوع شول او حکومت هم په ځای ټینګ شو، د اقتصاد درې واړه عمده اړخونه یعنې تولیدات، مبادلات او توزیع به ټول دولتي او حکومتي یعنې سوشلستي کوي، لکه څنګه چې په شوروي کې په ۱۹۲۹ کې نېپ ترک شو او اقتصاد پلانیزی کړل شو. خو اوس حکومت د خپلې ایډیالوژۍ په خلاف چې د هغه له مخې سوداګران، کامپراډوران یعنې دلالان بولي او پانګه والا او صانعان د خواري کښو کارګرو زبېښاک ګر او ښکېلاک ګر ګڼي او خپل ځان معکوساً د زحمت کښو افغان کارګرو ټینګ ملاتړ او د پانګه والو او صانعانو مخالف بولي، کوښښ کوي چې په خپلې اصطلاح خپل دغه مخالف ښکېلاک ګر او زبېښاکګر لا هم قوي کړي او د خپلې خوښې د روغې جوړې د چلند حامیان یې وګرځوي.

## د ملي پخلاینې د سیاست ناکامي

سره له دې ټولو هلوځلو د روغې جوړې چلند لکه څنګه چې یې دمخه یادونه وشوه، په عمومي ډول بې تاثیره او د یو لړ شواهدو له مخې ناکام دی، چې دلته په لنډ ډول د هغو یادونه کېږي. د ناکامۍ غټ دلیل دا دی چې حکومت، حکومت نه دی، یعنې نه په ټول هېواد حاکم دی او نه ټول افغانان او یا د افغانانو زیاتره برخه د هغه ملاتړه نه ده.

## د حکومت د حاکمیت ساحه

حکومت یوازې په ښارونو او ښارونو ته په ورڅېرمه او په هغو پوړې په ترلو ناحیو، ایالتي مرکزونو او ځینو ولسوالیو او یو څو علاقه داریو په مرکزونو باندې حاکم دی. لویې لارې یعنې موټر تلونکي سرکونه هم په عمومي ډول او نه هر وخت د حکومت او شوروي عسکرو تر تاثیر لاندې دي. په ښارونو پورې د ترلو ناحیو پراخوالی او نه پراخوالی په هغو نظامي او ملیشیایي پوستو پورې اړه لري چې هلته مېشته وي، ځینې دغسې ناحیې یو څه پراخې او ځینې نورې یې تنګې او د نه شته په حکم کې دي. د مثال په ډول چاریکار چې د پروان ولایت مرکز او کابل ته نژدې هم پروت دی، دغسې ناحیه هېڅ نه لري، یعنې یوازې د چاریکارو ښار او د سالنګ – کابل لوریه لار یې په قبضه

کې ده، په داسې حال کې چې د جلال آباد د ښار ښاري ناحیه ښه پراخه ده. د کابل ښار که هم د حکومت مرکز او حکومت د هغه په کنټرول سره د ټول هېواد د حکومت ادعا لري، هم پراخه ساحه نه لري. سره له دې چې کابل اوس د پرچمي حکومت په دوره کې تر بل هر وخت نه د ثور په میاشت کې پراخه ساحه لري، یعنې لویدیځه خوا یې تر میدان ښار پورې غځېدلې، جنوبي پوله یې تر تنګي للندره پورې رسېږي، ختیځ یې لته بند دی (که څه همه په دې ورځو کې هلته د حکومت په قول د سپین غر ساختماني شرکت دیارلس تنه کارمنان د مجاهدینو د ګولیو قرباني شوي دي).

په دې ډول د کابل د ښار او نږدې اطراف (شش کروهي) امنیتي حال په عمومي ډول په دې وختو کې ښه دی او هغه هغو درو دفاعي ملاوستنو له امله ده چې په هغو کې ډېرې نظامي پوستې پرتې دي، البته دغه پوستې په ځای ولاړې او مېخ دي. د دغې په خلاف د کندهار ښار هېڅ اطرافي ساحه چې د حکومت په قبضه کې وي، نه لري او د مجاهدینو سفونه آن تر ښاره پورې اوږده غځېدلي دي او په خپله ښار له دوو بجو نه وروسته د حکومتیانو د پاره مامون نه دی. ویل کېږي چې هلته به داسې ورځ نه وي چې له ګوندیانو حکومتیانو او یا د دوی له پلویانو څخه څوک نه وي ترور شوی. له دې امله حکومت اوس کوښښ کوي چې زوړ ښار په بولدوزرونو سره وران کړي او امنیتي پوستې په کې ځای په ځای کړي او بیا ممکن منظمې ودانۍ په کې ابادې کړي. د هرات د ښار وضع هم لږ و ډېره د کندهار په څېر ده، خو هېڅ ښار هغومره نه دی خراب شوی لکه د کندهار ښار چې خراب شوی دی. په هر حال په ښاري ناحیو یا سیمو کې حکومتي پوستې پرتې دي او دغه پوستې په عمومي ډول په خپلو ځایونو کې میخ دي او دغه پوستې یوازې هغه وخت یو ځای بل ځای په توپونو ولي، چې په دوی د مجاهدینو له خوا ګذارونه وشي. حکومت ډېر زیار وباسي چې د خپلو دغسې امنیتي پوستو شمېر ډېر کړي او په دې ډول په خلکو او اطراف کې خپل نفوذ او حاکمیت خپور کړي، خو له بلې خوا د مجاهدینو کوښښ په دې کې دی چې دغسې امنیتي پوستې یا په زور له منځه یوسي او یا په کې په مختلفو تاکتیکونو سره نفوذ وکړي او بې له نښتې نه یې د ځان کړي. د پوستو جوړول او ورانول یوه پروسه ګرځېدلې او حکومت سره له ټولو

جدي کوښښونو پرمختګ نه شي کولی. په عمومي ډول د امنيتي پوستو او مجاهدينو تر مينځ يو راز مفاهمه او په عين مخالفت او جنګ کې د ناچارۍ ژوند موجود دی. ځيني دغه پوستې د مجاهدينو لپاره د وسلو يوه منبع هم شمېرله کېږي. په کومو ناحيو کې چې امنيتي پوستې موجودې هم دي، معنی يې دا نه ده چې د هغ ځايو خلک به حکومت ته مراجعه کوي. نه، نه يې کوي. يوازې د ښارونو خلک حکومت ته د چارو د اجرا، اضافي مالياتو د تاديې او داسې نورو چارو د اجرا لپاره مراجعه کوي.

## د مجاهدينو د حاکميت ساحه او قوماندانان

حکومت چې له ښارونو او ښاري ناحيو او سيمو نه هغه خوا د کوم مقصد لپاره ځي، بايد په کافي اندازه په نظامي او امنيتي قواوو سمبال وي. دا ځکه چې اطراف يعنې کلي، بانډې، ښارګوټي، پراخې او تنګې درې او هوارې پراخې سيمې ټولې د مجاهدينو په لاس کې دي؛ خو د هغوی دغه قبضه په عمومي ډول په چريکي او ګوريلايي ډول ده. حکومت کولی شي چې هلته هم نظامي قوه واستوي، خو دا کار هسې شکل لري لکه چې يوه بل ملک ته قوه استوي او پرې تېری کوي. ځينو سيمو ته هېڅ قوه نه شي استولی. د مثال په ډول د ځدرانو سيمه چې د قومي تنظيم له مخې په خپله د محل د قوم په لاس کې ده او د قومي شوراګانو له لارې اداره کېږي، د ۱۳۵۸ کال له ثور نه راهيسې د حکومت له کنټرول نه بېخي ازاده ده او حکومت چې يو څو ځله د هغو په مقابل کې فوځ استولی، پوره ناکام پاتې دی. هزاره جات هم لږ و ډېر همدغسې دی؛ خو حکومت له هغو سره منظمه مقابله نه ده کړې او دې ډول هزاره ګانو ته په دغه اوږده او افغان وژونکي جنګ کې د نورو قومونو په پرتله ډېر انساني تلفات نه دي اوښتي.

نو اطرافي سيمې د مجاهدو جبهه لرونکو ګوندونو د قوماندانانو په لاس کې دي او دوی واړه خورا سيال وسله وال ډلګي لري، چې ډلګي يې له يو څو مجاهدينو څخه جوړ دي. مجاهدين په عمومي ډول په خپله وي، چې په خپلو کليو بانډو په تېره په خپلو کورنيو او ځمکو خاصه پاملرنه لري. دوی هم د خپلو سيمو په ټوپوګرافۍ ښه بلد دي او هم د خپل وطن په ننګ او ناموس باندې په ټينګه ولاړ دي او د زړه پيوند ورسره لري چې له

هغوی نه د ایمان او قوي ارادې په زور د ځان په قیمت دفاع کوي. په ځینو سیمو کې دغه مجاهدین کرکېله کوي او د شپې وسله واله مجاهده، یعنې د دري ژبو په وینا « روز ملنګ و شب پلنګ) دي؛ خو له دې سره جوخت دغه مجاهدین یا لږ تر لږه د هغوی ځینې د محل په تربګنیو، دښمنیو او جارو جنجال کې تر دې حده نغښتي دي چې د هغوی تر تاثیر لاندې کېږي چې یا په خپلو منځو کې یا له ولسي بې وسه خلکو او یا د نورو ګوندونو له مجاهدینو سره د مختلفو موضوعاتو په سر نښلي او حتی مړي کوي او په دې ډول د ملي مقاومت غورځنګ ته په خپله صدمه رسوي او خپل او د مجاهدینو ګوند اعتبار د ولس د خلک په نزد کموي. په هرحال، څنګه چې دوی په خپله د سیمي خلک دي او له هغو سره په کلیو او بانډو کې یوځای ژوند کوي او په عضوي ډول ورپورې تړلي دي او ټول د ګډ دښمن پر ضد یا په ګډه یا په جلا ډول جنګېږي، د مقاومت دغه جاري غورځنګ، اسلامي، ملي، ولسي، ځایي او بېخکې او رښتینی دی. د اطرافي سیمو اداره د مجاهدینو د قوماندانانو په لاس کې ده. دوی قوماندانان او په واقع کې ټول مجاهدین په عسکري اصولو او انضباط سره تنظیم شوي، یعنې هم عادي مجاهد افراد او هم صاحب منصبان لری. قوماندانان د خپلو ډلګیو له لارې له ځمکه والو نه د عشر په نامه مالیات په جنس ټولوي او په نقده یې په نورو خرڅوي. دوی له محلي سوداګرو څخه ټکس اخلي او د افرادو او کورنیو تر مینځ شخړې او دعوې دنګلې چې تر پخوا په کراتو لږې شوي، فیصله کوي او په دغسې مواردو کې په دواړو خواوو باندې درانه جرمونه ږدي. خو داسې هم ډېر شوي چې له هماغه یوه ځمکه وال یا د هغه له بزګر نه د دوو مجاهدو ګوندونو عاملینو مالیات ټول کړي او سربېره پر دې د دغو ځمکه والو کورنیو له غړو نه چې خپله سیمه یې پرې ایښې او له حکومت سره په ښارونو کې په نظامي او ملکي ساحو کې کار کوي، د دوی په اصلي محل کې د دوی له بزګرو څخه د فیصدی په نامه نقدې پیسې تر لاسه کوي. البته دا هغه کسان دي چې په خپل اصلي محل کې د ځمکو خاوندان دي. په ځینو محلاتو کې قوماندانانو د رسمي ګوند د غړو ځمکې تصرف کړي او هغه یې بزګرو ته په بزګري ورکړي دي. دوی په همدې ډول په ځینو محلاتو کې له خلکو نه د ځان لپاره د اوړي او ژمي لپاره کالي هم اخلي. له ښارونو

ځخه پرته په ټول هېواد کې حال لږ و ډېر همدغسې دی. د لغمان په ولایت کې د مجاهدینو قوماندانان هغوی ته احوال استوي او دوکانداران د رسیدونو په مقابل کې مالیات ورکوي. په دې ډول دوی، دوه ځایه مالیات ورکوي.

مجاهدین وخت ناوخت په کلیو ننوځي او له ځمکه والو او بزګرانو ځخه ناری (ډوډی) خوري، په دې کې شک نشته چې دوی ته ناری عموماً د زړه له اخلاصه ورکول کېږي. داسې کېسې ډېرې اورېدل شوي چې ښځو خپلې ګاڼې خرڅې کړي او مجاهدینو ته چې ځانونه یې د دین او وطن په مثابل کې هره شېبه قربانۍ ته چمتو کړي او په هر حال کې کړاو نه ډک ژوند تېروي؛ د زړه له کومې ډوډۍ ورکوي؛ خو داسې هم اورېدل شوي چې ځینو مجاهدینو په دغه برخه کې د جهاد اصول نه دي مراعات کړي او په او بل نامه او حتی په ځینو وختو کې یې په غیر مجاز ډول له خلکو نه د ځان لپاره شته ترلاسه کړي دي.

د دغو ځایي قوماندانانو د حکومت کولو بل قوي شاهد دا دی چې دوی د رسمي ګوند د غړیو سربېره د هغو حکومتي، ملکي او نظامي منصبدارانو د تنخوا یوه وړه برخه هم د دوی په اصلي محل کې د دوی له خپلو خپلوانو نه ترلاسه کوي، که څه هم دغه ماموران او افسران په کابل کې دي او اطرافي مېنو ته هېڅ نه ځي؛ خو هلته جایدادونه لري. د قوماندانانو مالي آمران د تادیاتو په مقابل کې رسیدونه ورکوي او کوندې یې ساتي ترڅو د یو ګوند عواید معلوم او د مالي آمرانو په جمع قید وي؛ خو څنګه چې عایدات نامنظم او ناټاکلي دي، د ناوړه او شخصي استفادې لپاره ور خلاص دی، په دې معنی چې مالي آمران ډېر عواید ترلاسه کوي او د لږو رسید نه ورکوي. دا چې دغه عواید چېرته ځي، په یقیني ډول معلومه نه ده. قوماندانان او د هغوی لاس لاندې مجاهدین سره له دې چې د جهاد د ملا تیر حیثیت او قوماندانان یې نظامي رتبې لري، د خپلو مربوطو حزبونو د عاملینو په شان چې ګوندي کارونه په مخ بیایي، معاش نه لري. ذهنیت دا دی چې دا د خدای لپاره جهاد دی او په دغه جهاد کې هر مسلمان مکلف دی، د خپل توان په اندازه یا په مالي مرستو یا د ځان په قیمت برخه واخلي، خو د واقعي ژوند تقاضا دا ده چې د جهاد د لا موثریت او بري په غرض د یوه محل عواید باید د مجاهدینو د ژوندانه اړتیاوې پوره کړي. مګر د مجاهدینو د عوایدو لویه منبع

هغه غنیمتونه دي چې دوی یې له دښمن یعنې د کابل د رژیم او شوروي قواوو او په همدې ډول د دوی له کاروانونو نه چې خوراکي مواد نقلوي، ترلاسه کوي. خو د غنایمو دغه چانس په ټولو ولایتونو کې منظم، یقیني او سره برابر نه دی او څنګه چې جنګ ډېر اوږد شوی، د مجاهدینو او د هغوی د کورنیو د ژوند تامین یو مشکل ګرځېدلی دی او له دې امله په ځینو محلاتو کې ولسي خلک تر فشار لاندې دي. په هر حال، عواید چې په هر ډول ویشل کېږي، بې له شکه د محل قوماندانان د هغو په برخه کې ډېر واک لري. څرګنده ده چې د قوماندانانو واک او اختیار د هغوی په شخصیت، د هغوی په ګوند او د هغوی تر لاس لاندې مجاهدو په شمېر او ولس ته د هغوی په ګرانښت پورې اړه لري. په عمومي ډول دوی تعلیم یافته ګان او ځوانان دي چې په هغو کې د شخصیت او ولس ته ګران او نامتو قوماندانان لږ نه دي. په دوی کې احمدشاه مسعود د پنجشیر، مولوي جلال الدین حقاني د پکتیا د ځدرانو، عبدالحق جبارخیل د پغمان او تورن اسماعیل خان د هرات نه یوازې په خپل وطن کې، بلکې په سیمې او هر تر څه حده په جهان کې نوم ایستلی دی. د مکتب پخوانی معلم مرحوم عبدالقادر مشهور په ذبیح الله د مزار د مجاهدینو موثر آمر و، چې د جهاد په تنظیم کې یې بې ساری لیاقت ښودلی و. ټولو وسله والو مجاهدینو او په سر کې دغو ښاغلیو قوماندانانو د جهاد په دغه اوږده او له سختو ستونزو ډک تحریک کې د غازي محمداکبرخان، غازي ایوب خان او غازي محمد جان خان او هم اسطوره یي رستم د قهرماني کیسې یو ځل بیا تازه کړې او په خپلو قهرمانیو سره یې د روس غونډې بې رحم ستر جهاني قدرت چې نا محدوده منابع په لاس لري، په خپل وطن کې په ګونډو کړی او جنرالان یې چې د یو شمېر هغو جنرالانو په شمول چې د نړۍ په دوهم جنګ کې بریالي وو، دلته زړه خوړین او مغلوب کړي دي. دغو ښاغلیو مجاهدینو به د روس د یرغل د پوره په شا وهلو سره د نړۍ په دغه ګوټ کې د پنځو پېړیو د پراختیا غوښتنې او ملکونو نیونې مخه نیولې او په دې ډول به یې نه یوازې خپلو وطنوالو، بلکه انسانانو ته نه هېرېدونکې ستر خدمتونه هم کړي. اوس د دې پوره درک کېدلی شي چې د افغان اسلافو واقعاً د جهان ستر فاتحان د لوی سکندر په شمول په خپل وطن کې په ګونډو کړي وو. په همدې ډول اوس هر څوک

په دې يقين کولی شي چې د دوی نېکونو په نولسمې پېړۍ کې د وخت يو لوی استعماري طاقت يعنې انګليس هم په خپل وطن کې مات کړی و؛ نو پوره په ځای ده چې آزادي پال افغانان په خپلو دغو مجاهدو قوماندانانو هغسې وویاړي، لکه چې په خپلو تېرو قهرمانانو فخر کوي. ليکونکی خو د زړه له کومې په دې وياړي چې افغان او د افغانستان دی. دا ځرګنده نه ده چې دغه محلي قوماندانان تر کومه حده د خپلو ګوندونو د مشرانو هدايتونه مني او څنګه چې دوی د جنګ د جبهو مستقيم قوماندانان دي او څنګه چې دوی د حکومتي او شوروي په عصري وسلو سمبالو او موتريزې قواوو په مقابل کې د چا خبره هره شېبه تيار دي او څنګه چې دوی ته په عين حال کې د خپلو سيمو اداره ور په غاړه ده او څنګه چې د دوی ګوندي مشران له دوی نه لرې په پېښور کې دي، دوی بايد خود مختاره محلي نظامي حکمرانان وبلل شي. د دوی دغسې خودمختاري له دې نه هم ځرګندېدلی شي چې د مختلفو سيمو په بېلوبېلو ګوندونو پورې مربوط قوماندانان يو وخت بل وخت په خپلو منځو کې وسله والې مقابلې کوي. لکه په دې وختو کې چې د غوربند او پنجشير د قوماندانانو تر مينځ جدي نښتې شوي، سره له دې چې دوه کاله کېږي په پېښور کې د اسلامي ګوندونو ترمينځ د اووه ګوني اتحاد په نامه اتحاد هم راغلی دی.

د کابل حکومت په بېلوبېلو شکلونو کوښښ کړی چې دغسې مخالفتونو ته لمن ووهي. دغه بې اتفاقي بې له شکه د ملي مقاومت د غورځنګ يو ستر ضعف بلل کېږي چې مقابل لوري ته يې امېد ورکړی دی. ويل کېږي چې که په دوی کې دغه بې اتفاقي نه وای او د بېلوبېلو ګوندونو سره سره دوی لږ تر لږه په نظامي ساحه کې، مخصوصاً روسانو سره د نښتې په وخت کې يو وای او په ګډه يې په هغه يرغلونه کولی، روسان به ډېر دمخه له شکست سره مخامخ او له ملک نه وتلي وای. دلته په لږ تغيير سره د خوشحال خان خټک د يوه فرد راوړل موزون ښکاري:

*افغانان په توره ښه دي تر روسانو*
*اتفاق ورڅخه نشته ډېر ارمان*

سره له دې هم د مقاومت د غورځنګ رښتینی قوت په دې کې دی چې په یوې سیمې کې د بېلوبېلو قوماندانانو او د دوی د بې اتفاقیو او د بې شمېرو او قوي عملیاتو با وجود، حکومتي او شوروي قواوې په تر اوسه نه دي بریالۍ شوي چې اطراف د ښار تابع کړي. حکومت د خپلو او شوروي لښکرو په زور په هغو عصري وسلو سره چې یې لري، هرې سیمې ته چې وغواړي تللی شي، خو د درندو تلفاتو په منلو سره ممکن په ډېر زور سره یوه سیمه د څه وخت لپاره لاندې کړي، مجاهدین شاته وتمبوي؛ خو تر اوسه په دې نه دي بریالي شوي چې هېڅ نیول شوې سیمه د مجاهدینو ګوریلایي او ناڅاپي پرله پسې عملیاتو په مقابل کې حتی د لږ وخت لپاره هم وساتي. د ځدرانو سیمه او پنجشیر د دغه حال څرګند او د مجاهدینو لپاره د ویاړ ډکو قهرمانیو څخه ګرځېدلې دي، لکه چې جان آغا د اتیاومې قطعې قوماندان (د ببرک کارمل تروززی) ان د ۱۳۶۰ کال په میزان کې چې د لوګر مجاهدینو تر هغو پورې ۲۵۰۰۰ میله کلاشینکوفونه له حکومتي عسکرو نه ترلاسه کړي و، سید جعفر نومي افغان ته ویلي و«دغه ملت څوک نه شي لاندې کولی». د جان آغا دغه «څوک» بې له شکه شوروي دی.

څنګه چې جبهه لرونکي مجاهد ګوندونه په شمېر کې ډېر دي، ویل کېدلی شي چې نن ورځ په افغانستان کې حکومتونه ډېر دي او یو واحد حکومت چې په ټول هېواد حاکم وي نشته. د کابل حکومت د دغسې حکومتونو په ډله کې یوازې یو حکومت دی؛ د هغه ستر خصوصیت په دې کې دی چې هغه یو ښاري او له شوروي نه په افغانانو باندې یو تپل شوی حکومت دی. د کابل حکومت ځکه د ټول افغانستان د نمایندګۍ ادعا کوي چې مرکز او ښارونه یې په لاس کې دي او له هغه سره جوخت ډله ییز مفاهماتي عصري تبلیغي وسایل په قبضه کې لري او د شوروي بې شمېره مشاورینو په هدایت یو شمېر بیوروکراتان او میرزایان چې سروالان یې د وزیرانو په نامه یادېږي، د ښارونو په چارو کې ورسره مرسته کوي او د دوی ټولو شاته د شوروي د حکومت هر اړخیز، ټینګ او بې دریغه ملاتړ او د هغه تر یو لکو نه زیاتې لښکرې پرتې دي چې حکومت یې په خپل قوت په ځای درولی دی. که د شوروي دغه نظامي قوه نه وي، دغه حکومت به پخوا

له دي چې وسله مجاهدين يې ړنګ کړي، لومړی به د ښاري ټنګ والاوو او ښاريانو له خوا ړنګ شوی وي. دغه وينا به يوڅه په مبالغې بنا وي، خو په دې کې هېڅ شک نشته چې حکومت لکه څنګه چې دمخه وويل شول، هېڅ اجتماعي او ملي بنسټ نه لري او کاواک دی. که څه هم د رسمي ګوند ډېر شمېر غړي په تېره خلقيان د اطراف دي، خو اطراف له ګونديانو نه پاک دی، دوی يوازې په ښارونو کې او په ښارونو کې هم په خاصو محفوظو برخو کې، مثلا په کابل کې په مکروريانو او وزير اکبرخان مېنې کې په داسې حال کې چې زياتره يې په وړو توپنکچو مجهز دي، ژوند کوي.

## اطرافي مشران

حکومت د اطرافو يو شمېر ځمکه وال، سپين ږيري، قومي مشران او مذهبي عالمان او روحانيون او پخواني بيوروکراتان او پخواني نظامي افسران په ايالتي مرکزونو او په کابل کې د سولې او روغې جوړې په کميسيونونو کې ټول کړي دي. دوی معمولاً هغه کسان دي چې د کورنۍ غړي مثلاً زامن يا ورېرونه يې ګونديان او حکومتي کارمنان شوي او يا په خپله دولتي معاش خواره او يا د آزاد کسب خاوندان دي او په کابل او نورو ښارونو کې په کلونو کلونو اوسېدلي دي. دوی د ځمکو د اصلاحاتو په وجه د خپلو ځمکو يوه برخه له لاسه ورکړې او د ډېرو نورو عواملو په وجه هم هغه د پخواني نفوذ او قدرت خاوندان نه دي. حکومت په دې برخه کې هم د خپلې مارکسستي ايډيالوژي او هم د وطن د اجتماعي واقعيتونو په تضاد کې ګير او په بد حال کې ښکاري. خلقي حکومت چې څومره وکولی شول، هغومره اطرافي مشران، مذهبي عالمان او روحانيون چې په خپل فکر يې د خواري کښو بزګرو طبقې دښمنان وو، د فيوډالانو او مرتجعينو په نامه له مينځه يوړل. دوی هېڅ په دې فکر کې نه وو چې د وطن ځمکه وال، هغه هم د شلمې پېړۍ په دوهمه نيمايي کې د اروپا د منځنيو پېړيو فيوډالان نه دي چې په کروندګرو انسانانو باندې واکمني ولري، يعنې د هغو د کار قوه د ځان په ګټه استعمال کړي او د وژلو تر سرحده پورې په هغو زورزياتي وکړي او له ښځو او لوڼو نه يې ناوړه استفاده وکړي. په افغانستان کې هېڅ وخت په تېره د اميرعبدالرحمن خان له واکمنۍ وروسته دومره پراخې ځمکې مخصوصاً په

سین لرونکو غرونه چارپېر درو کې نه وې او ورسره غوځه واکمني د هېڅ یوه ځانګړي ملاک په برخه نه وه چې فیوډالي مناسبات ترېنه جوړ کړي او په نتیجه کې د ځمکه والو او کروندګرو ترمینځ شدید طبقاتي مناسبات مینځ ته راغلي وای او یو د بل د سر دښمن شوي وای او حکومت د یوه په خپلولو سره هغه بل لاندې کړی وای او د ځمکو دغسې اصلاحات یې په بري سره سرته رسولي وای، لکه چې خلقي حکومت شروع کړل. د دې په خلاف په وطن کې د تېرو سلو کالونو په بهیر کې په خاص ډول ثومره چې د ولسي خلکو او حکومتي عمالو تر مینځ تضاد شدید شوی و، هېڅکله د بزګرو او ځمکه والو په ضد د مخالفت ډله ییز صنفي احساس او شعور نه و موجود. دغه حقیقت د ثور له کودتا نه وروسته تر بل هر وخت نه زیات ثرګند شو چې یو شمېر بې ځمکو بزګرو اصلاً د ځمکه والو ځمکې وانه خېستلې شوې او له هغه ثخه چې وایې خېستلې، یو شمېر یې په داسې حال کې چې د ځمکې د اصلاحاتو سندونه یې په جېبونو کې لرل. په هر حال، ثه وخت چې پرچمي حکومت واکمن وګرځول شو، د مشرانو په مقابل کې یې له وحشت نه ډک چلند نرم کړ او د لومړي ځل لپاره یې په ۱۳٦۲ کې له دغسې کسانو نه د اجتماعي شخصیتونو په نامه یو کنفرانس دایر کړ او بیا یې د ۱۳٦۴ کال په سر کې د لویانو او قومي مشرانو لویه جرګه هم جوړه کړه، خو دا ټول په نامه او د ننداري لپاره وو. حکومت په دغو جرګو کې د خپلې خوښې قومي مشران له ښارونو او ولایتي مرکزونو ناڅاپه او په بې خبره ډول ټول کړل او د جرګې په تالارونو کې یې کښېنول، غوړ ناری یې پرې وخوړل او خپلې جوړې شوې لېکنې یې پرې واورولې او خپلې پرېکړې یې پرې ومنلې. د ځمکو د اصلاحاتو په لومړۍ دوره کې یعنې د خلقي حکومت په دوره کې چې مشران د فیوډالانو په عنوان د ایډیالوژۍ له مخې څوک وژل کېدل او څوک کنځل کېدل، له هغه وروسته په پرچمي دوره کې د وطن پالو ملي شخصیتونو په نامه ستایل کېدل او دې حالت ته «عنعنه د انقلاب په خدمت کې» وویل شوه. په هر حال په دواړو دورو کې محلي مشران ضعیف شول او له کارنده اعتبار او قوت نه ولوېدل. دا حال مخصوصاً د هغو په برخه شو چې له ولس نه لې ښارونو کې اوسېدل او دوی په شمېر کې ثه لږ نه وو. تر هغه لا مهمه دا ده چې د شریکي په اوسني جنګ کې اصلاً د دغسې

مشرانو رول ختم دی او د دوی پخواني او عنعنوي ځای هماغو نويو نظامي حکمرانانو يا قوماندانانو نيول، چې شرح يې دمخه وشوه. په دې حال کې ځنګه چې دغو مشرانو خپل عنعنوي نفوذ او رول او قوت له لاسه ورکړی، يوازې د قاصدی او منځګړيتوب رول ورپاتې دی او دغسې پروني مشران ننني ابن الوقتان او قاصدان ګرځېدلي دي. دوی به يا د دوی اکثريت به د جنګ مخالف او د سولې روغې پلويان وي، خو هډو د دې توان نه لري چې د مجاهدينو په حېر سوله او روغه د شوروي قواوو په وتلو پورې مربوط اعلان کړي او په هر حال يو ټينګ دريځ غوره کړي، که څه هم په خصوصي مرکو کې دوی له څو ګيلو سره سره د مجاهدينو په خوا دي. په هر حال دوی به د ولس او حکومت تر مينځ د قاصدی او يو راز منځګړيتوب په کار کې رښتيني وي، خو په وطن کې جاري جنګي عمليات د دوی هلې ځلې په هر شکل او مقدار چې وي، د اوبو د پاسه نقش کوي، ځکه چې د حکومت يو اړخيزه اوربند سره سره جنګ په ټول هېواد کې د پخوا په شان روان دی او په دې وختو کې د کندهار، هرات، پکتيا او کنړ په ځينو برخو کې حتی تر پخوا نه کله کله ډېر شديد وي. په دې حال کې د کليو، بانډو او ښارګوټو ورانی او د ولسي خلکو مرګ او ژوبله او مهاجرت هم زيات شوی. د حوت په ۲۳مه د لغمان داليشنګ ښارګوټی تر شديدې بمبارۍ لاندې ونيول شو. له هغه وروسته په شوروي تاجکستان کې د افغاني مجاهدينو د دوو عملياتو د انتقام په بدل کې د کندوز ولايت امام صاحب او ورځېرمه کلي يې په يوه وخت کې د ځلوېښتو شوري الوتکو له خوا تر سختې بمبارۍ لاندې ونېول شول چې ورانی او تاوان يې بې حده زيات دی. د جنګي عملياتو کمی نشته، خو دا دوه يې په دې شپو ورځو کې څرګند مثالونه دي. له دې سره جوخت خارج ته له افغانستان نه مهاجرت زيات شوی او کم شوی نه دی.

## د ملي پخلاينې سياست او مهاجرين

له کومې ورځې چې د روغې جوړې چلند غوره شوی، ډېر افغانان په هجرت کولو مجبور شوي او تر هغو لږ مهاجرين بېرته وطن ته ستانه شوي دي، که څه هم حکومت ادعا کوي چې تر اوسه (د ثور ۱۴) ځلوېښت زره مهاجر هېواد ته ستانه شوي دي. د روغې جوړې د چلند له اعلان نه وروسته

کومې هغه بمباری چې حکومت له سرحد نه هغه خوا د افغاني مهاجرو په کمپونو کړي او د هغو په نتیجه کې تر دوه سوو نه زیات مهاجر افغانان تلف شوي دي، د دغه سیاست له بریالي کېدو سره په هېڅ وجه مرسته نه کوي. له دغو بمباریو نه شاید د حکومت یا په صحیح عبارت د شوروي د حکومت هدف په پاکستان باندې فشار راوړل وي چې دننه په پاکستان کې د افغاني مهاجرینو او ځایي خلکو تر منځ ورانی راولي او په دې ډول د پاکستان حکومت لپاره مشکلات خلق او ډېر کړي، تر څو دغه حکومت د ژنیو په راتلونکو خبرو کې خپل چلند نرم کړي او د مجاهدو ګوندونو له ملاتړ نه لاس واخلي. څنګه چې دا موضوع په بین المللي اړیکو پورې اړه لري، د هغه په باب بحث مونږ له موضوع نه لري کوي. دلته کافي ده دومره وویل شي چې دغو بمباري ګانو سربېره پر دې چې د الوتکو په نسکورولو سره بین المللي فضا خړه کړې، مهاجرین او مجاهدین یې پر خپل هغه هوډ نور هم ټینګ کړي، چې دوی د روغې جوړې د چلند له اعلان نه دوه ورځې وروسته د جدي په ۲۷مه په پېښور کې په داسې یوه لویه غونډه کې کړی و چې په زرګونو زرګونو مهاجرین په کې غونډ شوي وو او هغو ته د مجاهدو مشرانو وینا وې کړې وې او هلته عمومي پرېکړه وشوه چې تر هغو چې شوروي قواوې له افغانستان نه نه وي وتلي، دوی وطن ته نه ستنېږي او د هغوی په ضد جهاد به د بري تر پړاو پورې په مخ بیایي. په بل عبارت د کابل حکومت د روغې جوړې د ولس په ډېرې غټې برخې کې چې دربېمه یې تشکیلوي او د مهاجرو په څېر په پاکستان، ایران، هندوستان او یو شمېر اروپایي او امریکایي ملکونو کې ژوند کوي، هم پوره ناکام دی. د «پوره ناکام» افاده د پورته مطلب لپاره په عمدي او مسئول ډول غوره شوی. څرګنده ده چې حکومت ادعا کوي، لکه چې دمخه یې یادونه شوې، تر اوسه څلوېښت زره مهاجر وطن ته ستانه شوي دي، د باوري منابعو په قول دغه شمېر جعلي دي. دا هم سمه نه ده چې وویل شي، لکه څنګه چې حکومت وایي، چې د پاکستان حکومت د امریکې د حکومت په هدایت د ماجرو مانع و نه ګرځي، ټول مهاجر به وطن ته ساته شي. په دې کې شک نشته چې یو شمېر مهاجر به له بهر نه ستانه شوي وي، لکه څنګه چې د جدي د پنځه وېشتمې نېټې نه د مخه هم مهاجر د بېلوبېلو عواملو په وجه وطن ته ستنېدل چې په هغو

کې په بهر کې د مهاجرت ژوند په اصل کې له ستونزو او کړاو نه خالي نه دي او په خپل ټاټوبي کې ژوند کول د هر چا لپاره په تېره ولسي او اطرافي افغانانو لپاره يوه نه تعريف کېدونکې جاذبه لري. غټه خبره دا ده چې د دغو بېرته ستنو شويو مهاجرو شمېر د هغو نويو مهاجرو له شمېر نه لږ دی، چې په دغې مودې کې پاکستان او ايران ته للي دي. سربېره پر دې د پنځو ميليونو مهاجرو له جملې نه چې تر اوسه په بهرنيو هېوادونو کې اوسي، د يو څو لسو زرو کډوالو ستنېدل، هغه هم که ربښتيا وي، چندان مهم نه بلل کېږي؛ نو دا سمه ده چې وويل شي چې تر هغه حده چې د کابل د حکومت د روغې جوړې چلند په مهاجرو پورې اړه لري، هغه پوره ناکام دی. په دې باب به دا سمه وي چې د حکومت هغه بله ادعا تر يوه حده ، نه په ټوله معنې، ومنل شي چې دننه په وطن کې يو شمېر وسله وال افغانان د روغې جوړې د چلند له اعلان نه وروسته له غرو رغو نه له خپلو کورنيو سره ښکته شوي او حکومت ته تسليم شوي دي. د دغسې کسانو شمېر په اصل کې دومره ډېر نه دی، چې د ملاحظې او اهميت وړ وي. سربېره پر دې حکومت ته د دغسې خلکو تسليمېدل د ډېرو نورو عواملو په وجه او په هغو کې په خاص ډول د رژيم دستوري کسان دي چې د تسليمېدو ننداره وربانديې جوړه کړي او يا د خوړو د اساسي څېزونو ګرانوالي په وجه دی چې په ځينو برخو مثلاً فارياب کې د دغو څېزونو کمښت نږدې د قحطۍ سرحد ته رسېدلی و. په بل عبارت دلته د دستوري کسانو تسليمېدل او د خوړو د شاينو لږوالی او ګراني د حکومت د روغې جوړې له چلند سره مرسته کړې ده.

# دوهم فصل



## اقتصادي اوضاع او د هغې اجتماعي تاثيرات

### مقدمه

يـو تريـخ حقيقـت؛ خـو د جنـګ پـه حـال کـې عـادي حقيقـت، دا دی چـې زيـات شـمېر اطـرافي افغانـان لـه خپلـو کورنيـو سره مجبـور شـوي دي چـې خپلـې سيمې پرېږدي، لـه ملـک نـه د بانـدې لاړ شي يـا کابـل تـه مخـه وکـړي او يـا نـورو ښـارونو او نـږدې سـيمو تـه پنـاه يـوسي. او څنګـه چـې پـه اطـرافي سـيمو کـې اساسـآ د کروندګـرو شـمېر ډېـر دی، (د کروندګـرو تناسـب ممکـن پـه سـلو کـې د اويـا پـه شـاوخوا کـې وي) او څنګـه چـې دوی د ځمکـه والـو، سـوداګرو او نـورو نسـبتاً شـتمنو پـه شـان ذخيـره نـه لـري او د پيـدا کـړه او ژونـد کـوه پـه حـال کـې دي، طبيعـي ده چـې د مهاجـرو ډېـر شـمېر بـه همدغـه کسـان يعنـي کروندګـر وي. پـه بـل عبـارت اطـرافي سـيمو د کرکېلـې او زراعتـي توليـد انسـانان پـه ډېـر شـمېر لـه لاسـه ورکـړي دي او زراعـت سـخته صدمـه لېدلـې ده.

### د زراعتي توليداتو لږوالی

زراعتـي محصـولات تـر هـر وخـت نـه زيـات اوس څـو چنـده لـږ شـوي او دومـره لـږ شـوي چـې هغـه د پاتـې افغانانـو (ممکـن اوس دننـه پـه وطـن کـې د لسـو ميليونـو پـه شـاوخوا کـې انسـانان وي) لپـار بـس نـه دي. سربېـره پـر دې د حکومـت د نظامـي او امنيتـي پوسـتو متصديانـو مخصوصـآ د شـوروي عسـکرو لـه لاسـه کروندګـري پـه ځينـو سـيمو او محلاتـو کـې د سر پـه قيمـت تمامېـږي. پـه

ځینو سیمو کې زراعتي او حتی تیار فصلونه په ټانکونو او نورو ماشینونو سره په عمدي ډول له مینځه وړل شوي او یا اور ور اچول شوی دی، تر څو د مقاومت غورځنګ ضعیف شي. نتیجه دا شوې چې په ځینو سیمو کې ډېرې پراخې ځمکې شاړې مېرې یا جبې شوې کاریزونه او کانالونه وچ شوي او زراعتي سیستم او په تېره د اوبو لګولو سیستم په ځینو سیمو کې لږ او په ځینو سیمو کې په پوره ډول له مینځه تللی دی او زراعت ته چې ژوند پرې بنا دی، بېخي ډېر تاوان رسېدلی دی. دا چې کشتمند وخت په وخت په خپلو رسمي رپوټونو کې د زراعتي محصولاتو او حتی رنګ رنګ ترکاریو په باب دقیقې او د رضایت وړ احصایې ورکوي، دی بس د خپل ځان او نورو غولول غواړي. دلته دا هم د یادونې وړ ښکاري چې مازاد زراعتي خاصلات، پخوا په خلاف، ښارونو ته چې تر پخوا څو چنده لوي شوي (د کابل نفوس څه باندې دیارلس لکه شوي) د ترانسپورتي ستونزو او په ځینو حالاتو او وختونو کې د مجاهدینو د مخالفت له امله د ښار او اطراف ترمینځ د خوړو په شیانو کې مقداري توپیر تر بل هر وخت نه ډېر څرګند دی او حتی په اطراف کې هم د اوړو کمښت دی او له ښارونو نه ورته وړل کېږي. یو ډاکټر وایي چې ده پوره یوه میاشت د غور ولایت په چغچران کې غوښه په سترګو نه ده لیدلې. په هر حال د پورته عواملو او یو لړ نورو عواملو په وجه چې په هغو کې د زیاتو پیسو چاپول په لومړۍ درجه کې راځي؛ قیمتي او ګراني په وطن کې پیدا شوې ده.

## اوسنی انفلېشن یا بې سارې قیمتي

د وطن دغه موجوده قیمتي ساری نه لري او عمومي شوې ده. که د حکومت له لارې د شوروي نه د ژوندانه لومړني اساسي شیانو لکه اوړه، صابون، بوره، تېل باب او داسې نور ډېر مواد و نه رسیږي او که له پاکستان نه غنم، اوړه، وریجې د څارویو غوښې او دغسې نور ډېر انواع او هغه هم په ډېر مقدار هر ورځ را ونه رسیږي، دغه موجوده قیمتي به په قحطۍ واوړي.

د کال ۱۳٦۵ د حوت په میاشت کې د پسرلي د زیاتې او پرله پسې وریا نه دمخه په اطراف کې هم قیمتي ډېره شوې وه. شاید فاریاب او مزار یې یو افراطي مثال وي، چې هلته د هغه ځای یو من اوړه (د کابل دوه منه)

یوولس سوو افغانیو ته رسېدلي وو. له هغه وروسته په ظاهره کې د بارانونو له امله د غلې نرخ ښکته شو، سره له دې اوس په کابل کې وریجې من په شپږ سوه، د خوسي غوښه کیلو په ۲۰۰ او د پسه غوښه په ۳۰۰ افغانۍ ده. یو من پیاز ۳۰۰ افغانیو ته هم رسیدلي وو او وروسته ارزان شول. د خارجي مصنوعاتو او متاعو د قیمت اندازه له دې نه اټکل کېدلی شي چې اوس د یوه امریکایي ډالر بیه ۱٦۰ افغانۍ ده.[1] په داسې حال کې چې د ثور تر کودتا نه دمخه حتی ۳۷ افغانیو ته ښکته شوې وه. خودکار قلمونه چې دانه یې د غوایي تر کودتا نه دمه یوه او دوه افغانۍ وه، اوس له لسو نه تر شلو افغانیو پورې دی. د اغوستلو د کالیو بیه دې همدغسې قیاسولی شې. یوازې ښه شتمن نوي کالي او نوي ټکران رانیسي چې یو نوی کمیس له ۷۰۰ نه تر ۱۰۰۰ افغانیو پورې بیه لري. عامه او متوسط خلک په عمومي ډول په امریکایي لیلامي کالیو ځانونه پټوي. د دغه کالیو ساحه ښه پراخه ده، عمده انواع یې وړین جاکټونه، مصنوعي ترکیبي جامې، وړین کالي، دریشي ګانې، د کور پردې، بوټان او داسې نور دي. که دغه کالي نه وای او په نهایت کې زیات مقدار او ارزانه بینه نه وای موجود، د افغانانو حال به خصوصاً په ژمي کې نهایت مشکل وای. د خدمتي او غیر فني کارونو اجوره هم ښساري انفلیشن او هم د انساني قوې د لړوالي په نتیجه کې په اصطلاح اسمان ته لوړه شوې. یو غریبکار اوس د ورځې په درې سوه افغانیو اجورې قانع نه دی، په داسې حال کې چې شل کاله دمخه د یوه اجوره کار ورځنۍ اجوره ۳۵ افغانۍ وه. په دې برخه کې د ۱۳۵۸ او اوس ترمینځ هم ډېر توپیر لېدل کېږي. په ۱۳۵۸ کال کې د یو مزدورکار ورځنۍ اجوره اویا افغانۍ وه او اوس ۳۰۰ افغانۍ، او د یو ګلکار له ۲۰۰ نه تر ۲۴۰ پورې وه او اوس ۱۰۰۰ افغانیو ته رسېدلې ده. هغه کال پخه خښته په یوه افغانۍ وه، او څلورو ته ختلې ده، اوس سمنت ممکن یوازې لویو او پخو واسطه لرونکو ته هغه هم په ډېر کړاو میسر شي، په داسې حال کې چې د غوري سیمنټ د یوې بورۍ بیه په تور بازار کې له ۸۰۰ نه تر ۹۰۰ افغانیو پورې ده او رسمي نرخ یې هماغه پخوانی یعنې بورۍ په ۱۴۷ افغانۍ ده. په دې حال کې د عصري پخو کورونو

[1] د همدغه کال (۱۹۸۷) د ډسمبر په ۱۵مه د یو ډالر بیه ۱۸۵ افغانۍ شوې وه.

ودانول نه یوازې بې توله پیسې غواړي، بلکې له حد نه زیاتې ستونزې هم غواړي. همدغه سبب دی چې د پرچمي حکومت له هسکېدو نه وروسته یوازې یو څو شخصي پاخه عصري کورونه که ودان شوي وي، په داسې حال کې چې د ښار په حواشیو کې په ښار باندې د اطرافیانو د هجود په اثر ډېر خام کورونه بې نقشې اباد شوي دي. له دغه لنډ تصویر نه دوه مهم مګر ترخه حقایق څرګند دي. لومړی دا چې د وطن موجود انسانان او په هغوی کې لومړۍ درجه ښاریان چې د ټولو شمېر ممکن تر لسو میلیونو څخه لږ وي، د صناعتي محصولاتو په څېر په لومړنیو خوراکي موادو کې هم په خارج باندې متکي دي. دا به مبالغه نه وي چې وویل شي، داسې افغانان به نر وي که ښځه، اطراف کې وي یا په ښار کې پیدا نه شي چې کالي او د خوړو مواد یې دواړه داخلي وي. بله دا چې د امریکایي لیلامي کالیو نه پرته نور ټول زراعتي او صناعتي شیان او هم فني خدمات په عمومي ډول د افغانانو د عوایدو په تناسب بېخي لوړ او ګران دي او اوسنۍ قیمتي د افغانستان په ټول تاریخ کې ساری نه لري.

### د قیمتۍ علتونه

له انفلېشن یا قیمتۍ یعنې د نرخونو له لوړوالي، د پیسو له ډېروالي او د موادو له نسبي کمښت نه هېڅ هېواد هم خلاص نه دي. په افغانستان کې د غوایي تر کودتا نه دمخه او په دقیق ډول په افغانستان باندې د روس تر تېري پوري قیمتي محسوسه، تدریجي او په هر حال د زغم وړ وه؛ خو تر هغه وروسته، په تېره په دې وروستیو کالونو کې د جنګ په شدت سره قیمتي په بې ساري ډول شدیده شوې ده او نژدې ده چې اوس د زغم له حد نه واوړي. ډېر ستر علت یې د بانکنوټونو له حد نه زیات خپرېدل دي او هغه هم په داسې حال کې چې هغه بې ملاتړه دي. د باخبره اشخاصو په قول د ظاهرخان د پاچایۍ په دوره کې ۱۴ میلیارده افغانۍ په چلند کې وې او د هغوی ملاتړ ۲۵ ټنه طلا د خښتو، کمانیو او پهلوي پونډونو په بڼه وو. دغه سره زر د افغانستان په بانک کې یا چېرته په پاچایي ارګ کې خوندي وو او د کوم بین المللي بانک له خوا هر کال کتل کېدل. د داود خان په جمهوریت کې په موجودو بانکنوټونو باندې ۲ میلیارده نور اضافه شول او ټول شمېر یې

۱٦ میلیاردو ته ورسېد؛ خو د غوايي تر کودتا نه وروسته دغه بانکنوټونه په حیرانوونکي ډول زيات شول او اوس يې مجموعي مقدار ۸۴ میلیاردو افغانسو ته رسېدلی دی او هغه ۲۵ ټنه طلا هم لادرکه شوې ده. ويل کېږي چې دغه سره زر شوروي ته وړل شوي دي. د بانکنوټونو دغه حیرانوونکی مقدار له دې امله په اسانۍ په چلند اچول کېږي چې د غوايي تر کودتا نه وروسته دغه بانکنوټونه په شوروي اتحاد کې چاپېږي، په داسې حال کې چې تر هغه دمخه په غرب کې چاپېدل او هلته د هغو لپاره تضمين ښودل کېده. له دې سره جوخت په افغانستان کې د ډالرو مقدار لږ شوی او هغه زيات مقدار ډالر چې پخوا افغانستان ته راوړل کېدل، اوس نه راوړل کېږي او په عين حال کې دننه په هېواد کې عمدتا د شوروي له خوا د ډالرو لپاره تقاضا زياته شوې ده. د همدغو داخلي علتونو له امله ده چې په دې وختو کې چې په نړېوالو ماركيټونو کې د ډالرو بيه په تېره د جاپاني ين په مقابل کې ښکته شوې ده، بر خلاف په افغانستان کې د افغانۍ په مقابل کې په حیرانوونکي ډول لوړه شوې ده او اوس (د جوزا ۴ د مې ۲۴) د يوه امريکايي ډالر معادل ۱۷۲ افغانۍ دي، په داسې حال کې چې تر کودتا نه دمخه ۳۷ افغانۍ وې. د دغه حال لوی علتونه دا دي چې يو خو په خپل حکومت له بازار نه اسعار په تېره ډالر تهيه کوي او په خپله يې د پخوانيو حکومتونو په خلاف له باندنۍ سوداګرۍ نه په ډېره کمه اندازه لاس ته راوړلي دي. د شوروي حکومت هم د افغانستان بانک يعنې د کابل حکومت له لارې څخه نه د خپلو روسانو له لارې، د افغانستان د اسعارو د مبادلې له مارکيټ يا شهزاده سرای نه خارجي اسعار په تېره ډالر تر لاسه کوي. ويل کېږي چې د شوروي حکومت په دغه وسيله تر نورو زيات په هفته کې يو ځل ډالر په لاس راوړي او د افغانستان بانک له لارې يې خپل کوي. روسي مشاوران هم چې شمېر يې د لسو زرو په شاوخوا کې دی، د خپلو اجنټانو او افغانانو له لارې د بازار د ډالرو عمده اخېستونکي دي. دوی چې له خپل لګښت نه په زياته اندازه افغانۍ له بېلوبېلو منابعو څخه په لاس راوړي، هڅه کوي چې تر خپل لګښت نه زيات مقدار افغانۍ په ډالرو واړوي او دوی د نرخ پروا نه ساتي. بله دا چې د پخوا په خلاف د غويي له کودتا نه را په دې خوا باندني اسعار، په تېره ډالر کابل ته د انفرادي افغانانو له خوا نه راوړل کېږي. پخوا

بـه باندنیـو هېوادونـو کـې افغانانـو پـه تېـره هغـو ډېـر شـمېر افغانانـو چـې پـه عـربي هېوادونـو کـې یـې پـه کار کولـو سره ډالـر تـر لاسـه کـول، وطـن تـه اسـعار اسـتول. اوس دوی دغـه کار نـه کـوي. د دې کار څرګنـده نتیجـه لکـه چـې دمخـه ورتـه اشـاره شـوې، دا شـوې چـې خارجـي مصنوعـات چـې مقـدار او ډولونـه یـې تـر دننیـو مصنوعاتـو نـه څـو ځلـه ډېـر دی، پـه بیـه کـې لـوړ لاړ شي او دغـه حـال د افغانانـو ملاګانـې کړوپـې کـړې.

## د اجتماعي نابرابرۍ زیاتوالی

خـو دغـه حـال د ټولـو افغانانـو ملاګانـې یـو شـان کړوپـې کـړې نـه دي، ځکـه چـې د کابـل ښـاریانو عوایـد، د اطـرافي خلکـو د عوایـدو پـه پرتلـه هېـڅ وخـت دومـره نـا برابـر نـه وو، لکـه د دغـه کمونیسـتي ګونـد د حکومـت پـه وخـت کـې چـې دي او څومـره چـې اوس ښـاریان پـه رنـګ رنـګ اجتماعـي سـتونزو او مصیبتونـو اختـه دي، هېـڅ وخـت تـر دې انـدازې او پـه دغـو ابعـادو ورسره لاس او ګرېـوان نـه وو. حکومـت هـم لـه دغـو مصیبـت ډکـو سـتونزو څخـه انـکار نـه کـوي او نـه یـې کولـی شي؛ خـو د یـوه کمونیسـت حکومـت پـه توګـه د هغـه مسـئولیت پـه «ارتجـاع» او «امپریالیـزم» اچـوي او د خپلـو پالیسـیو زېږنـده یـې نـه بـولي او ادعـا کـوي چـې کـه د «امپریالیـزم» او «ارتجـاع» مداخلـې د «نااعـلان شـوي جنـګ» لـه لارې نـه وای، دوی بـه لـه افغانسـتان نـه اوس یـو ښـکلی بـڼ جـوړ کـړی وای. دغـه وینـا سـړي تـه د پروفیـسر پاپـر د ډولنـې د دسیسـي تیـوري پـه زړه کـوي چـې وایي«هـر هغـه څـه چـې پـه ټولنـې کـې پېښـېږي، پـه شـمول د هغـو څېزونـو چـې خلـک یـې د قاعـدې لـه مخـې نـه خوښـوي لکـه جنـګ، بېـکاري، بېـوزلي او کمبـودي د ځینـو زورورو افـرادو یـا ډلـو د مسـتقیمې طرحـې نتایـج دي.» یـا پـر وړانـدې وایـي «د هیومـر اربـاب نـوع بانـدې هغـه عقیـده چـې د هغـې لـه مخـې دوی د نزوجـان د جنـګ ناڅاپـي بدلـون مسـئول بلـل شـوی وو، لـه مینځـه تللـې ده؛ خـو د هیومـر پـه اولمپیـا کـې د اربـاب نـوع مقـام اوس د صیهـون پوهـو مشرانـو یـا انحصـار چیانـو یـا پانګـه والـو یـا امپریالسـتانو نېولـی دی.»

پـه افغانسـتان کـې ددغـې بـې سـارې نـا برابـرۍ سـتر علـت، لکـه څنګـه چـې د مخـه یـې یادونـه وشـوه، د حکومـت لـه خـوا د پیسـو لـه حـد نـه زیـات چاپـول او لـه هغـه سره جوخـت د دولتـي مامورینـو بېلوبېلـو ډلـو تـه د هغـو ډېـر نابرابـر ویـش

او توزیع کول او ورسره د دولتي ځینو ادارو او اشخاصو له خوا د رسمي زور په قوت د پیسو او شتمنیو خپلول دي. دغه کار په عمده ډول د دولتي معاش له لارې شوی دی. د هغو په سر کې د غوایي له کودتا نه ژر وروسته د وسله والو قواوو د منسوبانو د معاش دوه چنده کول راځي چې دغه زیاتوالی تر اوسه پورې په ډېرو نومونو نور هم پسې زیات شوی دی. البته باید وویل شي چې د افغانستان په تاریخ کې هر وخت چې برحال واکمن نسکور شوی او نوی حکومت یې ځای نیولی؛ نوي حکومت نظامیانو، مخورو او د نفوذ خاوندانو ته رنګ رنګ امتیازات ورکړي او په تېره رسمي معاشونه یې نظامیانو ته ډېر کړي دي. خو کوم هغه څه چې په دې باب د ثور له کودتا نه وروسته شوي، د درجې، شدت او کمیت له مخې بې ساري او حتی حیرانوونکي دي. د حکومت له نظره دغه کار بې له موجه دلایلو څخه نه دی شوی. حکومت ځان ته انقلابي وایي او په دې پسې دی چې د ټولنې هر اړخ په انقلابي ډول یعنې سمدلاسه او په بېخکي ډول واړوي او هر هغه څوک چې د هغه له دغه نظر او سیاست سره مخالفت کوي، د ضد انقلاب په نامه وځپي. تر څو په دې ډول په لږ وخت کې خپل دریځ ټینګ کړي او ورسره په اصطلاح شنګریلا یا د مځکې په سر جنت جوړ کړي. دا کار حکومت مجبور کړی چې له ټول ولس سره غېږه ورکړي. له ټول ولس سره غېږ ورکول حکومت په عین حال کې دې ته اړ کړی چې وار په وار د شوروي په قوت او دننه په کور کې په خپل نظامي قوت خپله اتکا ډېره کړي او دغو دواړو ته حیرانوونکي امتیازات ورکړي. د هغو امتیازاتو په باب چې شوروي په خپله کړي او یا حکومت ورته ورکړي، دلته دغومره ویل بس ښکاري چې د حکومت اصلي اختیار دار او واکدار د شوروي حکومت دی او هر هغه سیاست چې د کابل حکومت له اول نه تر اوسه پورې وضع کړی، په اصل کې شورویانو وضع کړی او د کابل حکومت مشران په اصل کې د شوروي د حکومت کارمنان او سرې دي. نژدې هره مهمه حکومتي اداره یو روسي مشاور لري. روسي مشاروان په خاص ډول په خاد او د ملي دفاع په وزارت کې ډېر دي. دوی په نامه مشاوران؛ خو په واقع کې اجرائیوي آمران دي. د صاحب منصبانو، لوړ رتبه ملکي مامورانو مقرري، ترفیع او تبدیلي د دوی په امر او دستور کېږي. د جنګي عملیاتو نقشه هم دوی برابروي. په همدې ډول دوی د عمده او اساسي پالیسیو په

باب د ګونديو او حکومتي لويانو لپاره ويناوې تهيه کوي، د حزب منشي هم له دې نه مستثنی نه دی. ګوندي او حکومتي خوا د دغو ويناوو د اصلي روسي تاجکي متن په دري اړوي او کابلي کوي يې. د مشاورانو د پاسه يو څو سر مشاور او د هغو او شوروي سفير او عين حال کې په کابل کې د کې جي بي د ببلې او پراخې شبکې د آمر له پاسه د نظامي او ملکي دوائرو چارو په باب اعلی قوماندان يا اعلی حکمران دی چې په لومړيو اولو کالونو کې دغه مشخص مشهور مارشال سرګي سوکالوف وو چې وروسته د شوروي د ملي دفاع وزير وټاکل شو او شوروي ته لاړ. په دې ډول (روسي مکناتېن) د اصلي مکناتېن په خلاف له ملک نه ژوندی ووت.

## د وسله والو قواوو امتيازات

خو د موضوع په ارتباط هغه امتيازات دي چې حکومت د وسله والو قواوو منسوبينو ته ورکړي دي. په وسله والو قواوو کې د ملي دفاع وزارت، د کورنيو چارو وزارت او دولتي امنيت د وزارت ټول ناميرزافني منسوبان راځي. د دوی ټول شمېر معلوم نه دی، خو زياتوالی او اهميت يې له دې نه ښه څرګندېدلی شي چې اوس دوی او په دوی کې په خاص ډول خاد اصلي حکومت دی او دا نورو وزارتونه په واقع کې هسې خدمتي او سرويسي اداري دي.

## د فوځي منسوبينو امتيازات

لکه چې د مخه يې يادونه وشوه، د نظامي منصبدارانو معاش په سلو کې سل زيات شوی. د يوه عسکر معاش چې تر کودتا دمخه د مياشتې پنځوس افغانۍ و، اوس د هغه د وظيفې د څنګه والي له مخې له يو نيم زر نه شروع کېږي او د احتياطي عسکر معاش اوه نيمو زرو افغانيوته رسېږي. په اصطلاح د ماشيني منصبدارانو په شمېر کې ډېر زياتوالی راغلی. د يوه کورس په ختمولو سره به کوم نيمچه باسواده او کوم نيمچه تعليم کړی چېرته بريدګي يعنې نظامي ووړ منصبدار شوی وي او د مياشتې به دومره معاش اخلي چې يو ملکي مامور چې د هغه ټول عمر قدر به يې خدمت کړی وي، هغومره تر لاسه کولی نه شي. لوړو رتبو ته ترفيع کول چې معيار يې

له اره رژیم ته وفاداري او د ګوند غړیتوب دی، په دې نهو کالونو کې ډېرې شوي چې اوس اردو له ځوانو ډګروالانو او جنرالانو نه پوره ده، لکه څنګه چې پوهنتون له پوهنوالانو او پوهاندانو څخه ډک دی. دا چې اوس د اکادمیشن د کاندید او اکادمیشن په نامه یو شمېر نامستحقانو ته د میاشتې پنځه زره او لس زره افغانۍ د هغوی له اصلي معاش نه برسېره ورکول کېږي، د نظامي منصبدارانو په څېر هغوی ته یوازې پولي امتیازات او رشوت ورکول او رژیم ته د غریب ملت په پیسو وفاداري ګټل او نندارې جوړول دي.

## د خادستانو امتیازات

خو د رسمي امتیازاتو او ورسره د حاکمیت او قدرت اصلي محل د دولتي امنیت وزارت دی چې پخوا د خاد(خدمات اطلاعات دولتي) په نامه د صدارت یو ریاست و. د دغه فني کدرونه په اصل کې په ملکي لباس کې پټ پولیسان یا څارندویان دي. دوی د دې لپاره چې د زیاتو عوایدو او پوره واک څښتنان شوي وي، نظامیان کړل شوي. په دې حساب د دوی معاش هم دوه چنده شوی. سربېره پر دې هر یو یې له دغه دوه چنده معاش نه په سلو کې له ۱۵ نه تر ۷۵ پورې نور امتیازات هم لري. ډېر کم امتیاز یعنې په سلو کې ۱۵ هغه خادست ته ورکول کېږي چې د خاد په مرکز کې چېرته په کومې غیر محاربوي یا غیر عملیاتي څانګې کې کار کوي؛ او تر ټولو لوړ امتیاز یعنې په سلو کې ۷۵ یې هغه خادست ته ورکول کېږي چې په عملیاتي جبهو یا نورو ورته خطرناکو عملیاتو او یا چېرته په لېرې محلاتو کې وظیفه ترسره کوي. دلته د دې خبرې یادونه لازمي ښکاري چې خاد هم موټورېزې او اوپراتیفي کنډکونه او هالیکوپټرونه لري. د خاد منسوبینو لپاره هم دکورنیو چارو د وزارت د منسوبینو په شان شوروي ډوله د هستوګنځي بلاکونه جوړ شوي دي چې خادستانو ته یې په اسانو شرایطو ورکوي. دا امتیاز غیر له هغه نه دی چې خادستانو ته دمخه په عمومي مکروریانو کې اپارتمانونه ورکړل شوي دي. دوی ځانته روغتونونه لري چې تر عمومي روغتونونو نه په دوا درملو او طبي کدرونو ښه سمبال دي او دوا ګانې یې هم مفتې دي. د امتیاز یو بل غټ مدرک د خادستانو لپاره د شوروي د سفر چانسونه دي. شوروي سفرونه د ثور تر کودتا نه وروسته د حکومتي منسوبینو

لپاره ډېر شوي، خو د هغه خاص ارتباط په وجه چې افغاني خاد يې له شوروي خاد(کې جي بي) سره لري، د خادستانو لپاره تعليمي لنډ چانسونه د نورو په پرتله په څرګند ډول ډېر دي. د خادستانو لپاره د ورسپارل شويو پټو او خطرناکو وظيفو او د همدغسې نورو مهمو دندو د اجرا په وخت کې د پيسو لګښت چې د خاد په حساب دی، په اصطلاح بې توله دی. ويل کېږي چې د همدغسې دندو د اجرا لپاره د مؤظفو عاملينو لپاره يې بې له دې چې د پيسو حساب ورکړي، خاص سيفونه خلاص پرېښودل کېږي. په اصل کې د خاد بوديجه ډېر او پټه ده او په ګوند او حکومت کې يوازې يو څو تنو ته معلومه ده. په هر حال د دغسې دندو په لړ کې د تحقيق د مؤظفينو هغه نقدي جايزې د يادونې وړ ښکاري چې د تحقيق دوسيې د موفقانه ترسره کولو (يعنې له تورن نه په هر نامه او ډول چې وي اعتراف ترلاسه کول) نه وروسته هغوی ته ورکول کېږي، په دغسې جايزو کې کله د نقدي په ځای ترفېع هم ورکول کېږي.

## د خادستانو غير قانوني عوايد

دا ټول هغه عوايد دي چې د قانون او مقرراتو له مخې خادستانو ته ورکول کېږي، لکه چې دمخه يې يادونه وشوه. نور يې هغه بې توله غير قانوني عوايد دي چې خادستان يې د وظيفې په جريان کې ترلاسه کوي. په دې ډول د هغوی حساب ممکن نه دی. دوه غټ مدرکونه يې جنګي جبهې او د کورونو لټول دي. د جنګ له جبهو نه غنيمت ترلاسه کول د غوايي د تراژيدۍ نه په وروسته کالونو کې، يعنې د خلقيانو په دوره کې ډېر وو. د بې سرۍ او خپل سرۍ په هغه وخت کې د ملکي او نظامي لومړنيو سازمانونو منشيانو د انقلاب ضد د ټکولو په نامه په بېلوبېلو نومونو خلک لوټ کړي دي. په دې لړ کې په ۱۳۵۷ کې دورېش خان ضابط په هرات کې په رڼا ورځ کې د مهريې د لېسې يوه متعلمه ووژله او د الماسو ګوته يې له ګوتې نه و ايستله. هغه وخت هرڅه چې د عملياتو په نتيجه کې د کليو او بانډو د خلکو له تېښتې نه په کورونو کې پاتې کېدل، د منصب دارانو به کېدل. په شتمنو ولايتونو مثلا په هرات کې منصبدارانو بېخي زيات غنايم په دې ډول ترلاسه کړل. په غنايمو کې قالينې، د ښځو ګاڼې او ترانسستري راډيوګانې

هم شاملې وې. د روسانو له تېرې نه وروسته چې د خاد فعالیتونه پراخ او نظامي شول، د خادستانو لپاره چې د نظامي منصبدارانو په څېر د جنګ د جبهې تر شا کارونه ټول د دوی په لاس کې ولوېدل، د غنیمت پیدا کولو لپاره هم لاره هواره شوه. له عملیاتو نه وروسته به چې سیمې او درې او کلي او باندې له انسانانو نه خالي شوې، خادستان به د لوټمارۍ لپاره د ډاکوانو په څېر په کورونو ننوتل. په اصل کې ډېر غریب خادستان اوس له دغې لارې نه څرګند شتمن او د قیمتي رنګ رنګ قالینو او فرنیچر خاوندان شوي دي. په خادستانو کې د پخوا وختو د مودو خواران نن ورځ سمدلاسه شتمن شوي دي او د دوی شمېر هم لږ نه دی. په خادستانو او په واقع کې په ټولو پرچمیانو کې دغه ناولي فکر ښه ببخ نیولی و چې دوی به «د ستر شوروي» د ملاتړ په برکت چې دوی ابدي ګاڼه، زر یا وروسته په دې موفق کېږي چې خپل حکومت په افغانانو تحمیل کړي. مخل توری کارمل خادستانو ته پوره ناز ورکاوه، خپل سرې یې په کې مبخ کړي وو او خاد په واقع کې په دې ډول د ده د قوت په مرکز بدل شوی و. ده به ویل چې دوی ینې خادستان د حکومت په ضد دسیسې شنډوي؛ نو ځکه خادستان د وړو دکتاتورانو په شان په ټینګه د خلکو په ځپلو او ټکولو معتقد وو. انساني ملاحظې ورسره نه وې او له خلکو سره د روغې او پخلاینې په فکر کې هېڅ نه وو. څنګه چې د شوروي له قوت نه په ډاډه وو، دوی دې فکر مست وو چې آخري بری حتماً د دوی دی؛ نو ځکه یې له هېڅ راز ممکنې بې رحمۍ نه ډډه نه کوله. نوی دوی له انسانانو نه د خالي شویو کورونو لوټول د امنیت د خوندي کولو یو ضروري جز ګاڼه. دا معلومه نه ده چې په دې هکله به یې مشرانو دوی ته هغسې شعار ورکړی وي، لکه څنګه چې عبدالله امین خلکو ته ورکړی و چې «د هزاره ګانو مالونه ستاسې او سرونه یې د دولت»، خو په دې کې شک نشته چې خادستان په لوټولو کې تر هېچا څخه کم نه دي راغلي. په دوی کې دغه ناولي فکر ښه ببخ نیولی و چې د انقلابي حکومت مخالفان د انقلاب ضد دي او د انقلاب ضد مرګ جایز دی. خو دغه فکر د دوی ټولو یا د دوی د ډېر شمېر لپاره یوازې یو ایډیالوژیکي سرپوښ و او ممکن د زړه په تل کې یې لوټماري او د خپل غریب ځان شمتن کول وو. په هر حال دوی ډېر پراخ لوټول کړي دي. په عین حال کې د روسي سرو لښکرو لوټماري هم

د دوی سره خوا په خوا روانه وه. روسي عسکرو حتی د کابل د ښار دوکانونه هم د شپې د بندیز په وخت لوټول. د دوی د لوټمارۍ مشهوره بېلګه د کابل ښار افغان سټورز ته ورځېرمه له اروپايي او جاپاني مالونو څخه ډک زيات واړه دوکانونه دي؛ خو د روسانو لپاره ځنګه چې د حجمي مالونو انتقال يو شرمونکی، نه يو مشکل پرابلم و، دوی به په کم حجمه قيمتي مالونو په تېره نقدو پيسو باندې زور اچاوه او بيا به په دې پسې وو چې خپل غنايم په ډېره کمه بيه خرڅ کړي، لکه ځنګه چې دوی د خپل دولت مالونه په ډېره ټيټه بيه خرڅول. په هر حال دا چې تر اوسه په لکونو نه، په ميليونونو خپل پلرنی ټاټوبی پرې ايښی او په پرديو وطنونو کې مهاجر شوي، يو علت يې د خادستانو، منصبدارانو او سرو لښکرو لوټماري ده.

## خادستان او ښاريان

خادستانو نه يوازې له اطراف نه شته ټول کړي، په ښارونو باندې چې د حکومت قبضه وه، دوی هم له لوټمارۍ نه ډډه نه ده کړې. د لوټمارۍ يوه لاره د افرادو له نيولو او بندي کولو نه وروسته د هغوی د کورونو لټول وو. په کوم ځای چې د حکومت قبضه وه، په تېره بيا په ښارونه او په ډېر خاص ډول د کابل په ښار د تورنو شمېر بېخي ډېر و. په دغو ځايونو کې د خاد له خوا سرونه او شتمني مصئون نه وو. په کابل کې به داسې کور نه وي، چې يا خادستانو او يا عسکرو نه وي لټولی. خادستان که څه هم له دې نه منع و چې د کورونو د لټولو په وخت کې د کور مالونه واخلي او خپل يې کړي. حتی دوی مجبور وو چې د کور له لټولو نه وروسته په کور والا باندې فورمه لاسليک کړي او کور والا رضايت ښکاري کړي چې د کور مالونه يې بې ځايه شوي نه دي؛ خو په عمل کې په داسې حال کې چې کور والا مغضوب وي او د کورنۍ ټول غړي يې يوې خوا ته او يا په يوې کوټې کې تخته شوي وي او ډېر شمېر وسله وال خادستان د کور ټول محتويات لاندې او باندې کوي او ځينې وخت حتی د کور غولي کيني، ممکنه نه ده چې څوک د دوی د لوټمارۍ مخه ونيسي. حقيقت دا دی چې په تېرو نهو کالونو کې يعنې هم د خلقيانو او هم د پرچميانو په وخت کې، خو ډېر زيات د پرچميانو ډېر

مقدار شته په کابل کې د نقدو، ګاڼو، طلا او داسې نورو په شکل خپل کړي دي. د دغې لوټمارۍ ډېر غټ مثال شاید هغه دوولس خښتې طلا وي چې خادستانو د حاجي برات بای د کور له لټولو او لوټلو نه په لاس راوړې چې د هغه زوی رسول بای په قول په ۱۳۶۲ کې د هغوی مجموعي ارزښت ۲۳ میلیونو افغانیو ته رسېده، که څه هم د هغوی موضوع سوچه تجارتي وه، نه سیاسي. په همدې ډول د هغه، هغه نوی ماډل بنز موټر چې تازه له جرمني نه وار شوی و، هم خادستانو وړی و. دغه موټر د تحقیق د تورمخي رئیس عبدالغني چې په لنډي مشهور دی، په برخه شوی. په طلاوو کې روسي مشاروان د خاد له نورو لویانو سره شریک وو چې دغه اشتراک د بندي رسول بای تولې هلې ځلې د طلاوو د بېرته خپلولو په منظور شنډې کړې.

د خادستانو لپاره د شتو غیر قانوني بله لار د شپې له خوا د دوکانونو او کورونو وهل دي چې په ډېرو حالاتو کې د انسانانو په ژوبلې او حتی مرګ او د ښځې په بې عفته کېدو هم تمام شوي دي. څنګه چې د غوایي له کودتا نه د نجیب الله د پخلاینې سیاست تر اعلان پورې د شپې له خوا په ګرځېدو باندې بندیز لګول شوی و، دغه بندیزونه خادستانو او ټولو هغو ته چې د شپې نوم یې لاره، د دې موقع برابره کړې وه چې دوی د ورځې له خوا کورونه په نښه کړي او د شپې ټول کور د لټولو په پلمه، بیا هم په وچ زور کورواﻻ یوې خوا ته کړي او شته یې په موټرونو کې واچوي او خپل یې کړي. دغسې پېښې د کابل په ښار کې بېخي ډېرې شوي دي. ډېره تازه یې د لیکونکي تر خلاصېدلو نه څو هفتې دمخه د همدغو خادستانو له خوا په قلعه زمانخان کې د پوهنتون د یو استاد ښاغلي لطف الله ساپي کور وهل او د هغو له خوا د یو ګزمه عسکر وژل دي. دغسې یو شمېر غله او ډاره مار خادستان نیول شوي او په بند محکوم شوي هم دي. په دې مینځ کې د نورو غلو داړې هم یو وخت بل وخت او حتی د امنیتي قواوو له خوا اورېدل شوي. د خادستانو له خوا ډېره غټه داړه هغه وه چې د دوی یوې ګزمې ډلې د پښتون په مارکیټ کې یو شمېر دوکانونه ووهل او د اتیا میلیونو په شاوخوا کې یې له سیفونو نه افغانۍ او خارجي بانکنوټونه و ابستل. ویل کېږي چې د دغې ډلې مشر زلمی نومی کندهاری و چې د یو څو ملګرو په قول یې د شوکمارۍ ډېره غټه برخه یې له ځان سره د باندې یووړه. په هر حال پاتې

ملګري يې په دغه تور بنديان شول چې له هغو نه يو يې د باشي سلام په نامه د پلچرخي په دوهم بلاک کې بيا باشي مقرر شو او هغه هلته د وظيفې په جريان کې په فسق او فساد او بچه بازۍ سره عامه رسوايي او بدنامي هم خپله کړې وه. له دغه ډول بيان نه وروسته چې اصلي مطلب ته توجه وشي، و به ويل شي چې په دغه رژيم کې د وسله والو قواوو منسوبين چې په هغو کې خادستان د ټولو په سر کې راځي، د وطن نوي شتمن افراد تشکيلوي چې د ګوند له غړو سره يوځای يې نوې حکمرانه سياسي طبقه مينځ ته راوړې ده. په دې حساب دغه جاري بې ساري قيمتي خادستانو او په مجموع کې د وسله والو قواوو منسوبينو ته دومره معنی نه لري، لکه څومره چې يې د نورو خلکو په تېره ملکي مامورينو، متقاعدينو او په خاص ډول بېکارانو او کم عايدو خلکو ملاګانې کړوپې کړې دي.

**د خادستانو شمېر**

څنګه چې خاد هم د پيسو او هم د قدرت په ستر مرکز بدل شوی او څنګه چې ژوند لکه چې يې يادونه وشوه د بې ساري قيمتۍ له امله ډېر ګران شوی او څنګه چې خادست کېدل له عسکري خدمت نه د بچېدو معنی هم لري، مراجعه ورته ډېره ده، سره له دې چې دا د روسانو يوه آله او د ولس په نظر تر ټولو بدنامه اداره ده. د منسوبينو شمېر معلومول يې ممکن نه دي، خو دا سمه ده چې وويل شي، خادستان د شيطانانو په څېر د ښار په هره برخه کې حاظر او ناظر دي او تا او ما هر څوک په دوکان، سرک، اداري، مغازې او هر ځای کې ځاري. د خادستانو شمېر په باب قياس له له دغه حقيقت نه ممکن نه شي چې د لغمان ولايت د ډېوې له کلي او په هغه پورې تړلې باندېږ بېلې څخه چې ټول به يې د سلو کورونو په شاوخوا کې وي او ليکونکی هم ورته منسوب دی، ۴۲ تنه يې يوازې د کابل د خاد منسوبين دي. دا به غلطه وي چې فکر وشي د وطن له هر کلي نه په دغه تناسب افراد په خاد کې ماموريت لري. د ډېوې خلک عموماً غريب او د دوی په تعليم کړو کې له يو څو تنو څخه پرته نور يې نيمچه عصري سست ايمانه عناصر دي. په دوی کې هم د نورو لغمانيانو په څېر د قوي ميرزايي عنعنې له مخې له حکومت سره د ماموريت کولو ميلان ډېر قوي

دی. د پرچمیانو په دوره کې دغه نیمچه تعلیم یافته ګان کابل ته په ورتګ مجبور شول. په دې ډول دوی د خپلو لږو ځمکو له حاصلاتو څخه یا بېخي لږ و ډېر بې برخې او محروم او د کابل د قیمتي ژوند له سختو شرایطو سره لاس په ګرېوان شول. څنګه چې په دغه کلي کې د پرچم د مخه یو څه ریښې غځولې وې، دوی ټول حکومتي او په حکومتي کې نظامي او په نظامي کې د خاد خلاصې غړېږي ته د ضرورت او هم ممکن د عقیدې له مخې ور ننوتل. خو خاد ته په خپله د دوی ننوتل دومره تعجب نه ښکاري. تعجب په دې کې دی چې د دوی مشران چې زیاتره یې د سپینو ږیرو خاوندان دي او لمونځونه کوي او بې تسبېحو نه ګرځي او د مسلمانۍ ناري یې آسمان ته رسېدلي، ولې په دې راضي شوي چې زامن یې د خاد له لارې د روسانو په خدمت کې ننوتلي دي. چېیان به ووايي چې دا ځکه د تعجب وړ خبره نه ده چې اقتصادي عوامل د انساني سلوک لومړني محرکات دي؛ خو د دوی دغه منطق د ډېوه والو ختیځې خوا ته ګاونډي عمرزیوال چې تر دوی هم په شمېر کې ډېر او هم تري نه ډېر شتمن دي، ماتوي. د عمرزیوالو د لویو ځمکه والو زامن هم د ډېوه والو په څېر په زیات شمېر خادستان شوي دي. د عمرزیوالو مشران ټینګ مسلمانان او درانه پښتانه دي. نه یوازې د لغمان په ولایت کې د کافي اندازه ځمکو خاوندان دي، بلکې ځینې یې په کابل کې هم ښه ژوند لري. تعجب په دې کې دی چې دوی ولې په دې راضي شوي چې زامن یې د خاد او روسانو په خدمت کې وي.

لوستونکو ته به هرومرو دا انتباه پیدا شوي وي چې خاد له لغمانیانو نه ډک دی. لغمان لوی ولایت او خلک یې په عمومي ډول درانده، با عزته، هوښیار او خواري کښ دي. خو له بده مرغه پخواني انتباه تر ډېره حده سمه ده. که خاد له لغمانیانو ډک نه دی، په دې کې شک نشته چې ډېر لغمانیان په خاد کې کار کوي. خو له دې سره جوخت باید وویل شي چې لغمانیان په خاد کې ټول په ټیټه سویه مینډل کېږي او د خاد مهم کارکوونکي شمالي وال – نه کوهدامنیان، کابلیان او یو شمېر پکتیاوال دي. شمالي وال د سیمې او نفوذ په تناسب په نورو چربې کوي او یو وخت تر ډېره وخته د خاد د ډېرو مهمو څانګو سروالان ټول همدوی وو. له نورو ولایتونو نه په خاد کې هومره کسان نشته، لکه د پورته سیمو چې دي. د کندهار له

ټول ولایت نه هسې کوم یو که په خاد کې وي. همدغه سبب دی چې په خاد کې، لکه څنګه چې د پرچمي حکومت سیاست دی، د پښتو او پښتنو په مقابل کې تعصب ډېر قوي دي، په دې چې هلته لاس بری د دري ژبو دی، لکه په څارندوی کې چې لاس بری د پښتنو په تېره د پکتیاوالو دی. د خاد په شمالي والو دري ژبو کې دا احساس ډېر قوي دی چې اوس وار د دوی دی او دوی باید د نادرخان د دورې د هغو نادودو قصور واخلي چې د دوی په پلرونو شوي دي. د خادستانو مستنطقینو ډېرو تورنو پښتنو ته دغسې ویناوې په څرګند ډول کړې دي. په همدې دلیل په خاد کې تورن پښتانه بس په دې چې پښتانه دي، تر نورو ډېر په کړاو شوي دي. افغان ملتیان په دې باب یو ډېر څرګند مثال کېدلی شي. په دې ډول دري ژبي خادستان، په تېره شمالي وال د پرچمي حکومت او په واقع کې د بریژنیف روسي حکومت د دغه پارونکي سیاست په ټینګ عملي کوونکي دي چې د هغه له مخې د هېواد سیاسي سروالي باید د ځینو وړو ملیتونو په همکارۍ او د شوروي په قوت د دوی وي او پښتانه چې یو شمېر څرګند عقده يي پرچمیان یې «بې فرهنګه اکثریت» او «فاشستانو» په نامه یادوي، پټون او وروسته پاتې وي، که څه هم پښتانه په شمېر کې تر نورو ملیتونو څخه زیات دي او په خپله شوروي په سلو کې ۵۲ اټکل کړي دي.

### اختلاس او قاچاق

د خاد له دغې لنډې شرحې نه چې بېرته لومړني مرکز ټکي ته مخ واړول شي، و به ویل شي چې دغه نوې سیاسي حاکمه طبقه د هغو عوایدو او سیاسي قدرت په سبب چې دوی د انقلاب او خواري کښ انسان ته د خدمت په نامه د ځان کړي، له دې نه په نسبي ډول ښه مأمونه ده چې د وطن دغه بې ساري قیمتي یې ملا ماته کړي. هو، دغه حاکمه طبقه هم، د نورو اجتماعي ډلګیو په څېر له سبا نه په اندېښنه کې ده او د جنګ او سیاسي ګډوډۍ په فضا کې ځان مصئون نه ویني. داسې ډېرې پېښې اورېدل شوي چې له هغو نه پوره څرګندېږي چې د سبا ورځې د مالي مصئونیت په منظور اوس نا مجاز کوښښونه ښه مروج شوي دي او دننه په ګوند کې د دولتي قدرت د ګټلو او ورسره یو ځای د پیسو ټولولو او سپما کولو

لپاره سخت کوښښونه روان دي. اختلاس نه یوازې په دولتي لیکونو کې د د ګوندي او غیر ګوندي کارمنو تر مینځ رواج موندلی؛ بلکې تر پورته ګوندي او دولتي سطح حتی ان د پولیټبوریو د غړیو ل خوا هم اوربدل شوی دی. په دې لړ کې په ۱۳٦۱ کې د څو پولیټبوریو لکه د نوراحمدنور او محمود بریالي په ګټه د څوسک صرافانو او سوداګرو په ذریعه سره زر د قاچاق په ډول خارج ته وړل کېدل. موضوع په دقیق ډول معلومه نه ده، خو په واقعیت کې یې شک نشته او هغه د عامه رسوایۍ حد ته هم رسېدلې ده چې د هغې په نتیجه کې سوداګر عاملین یې بندیان او محکوم شوي، مګر اصلي محرکین یې د پخوا په څېر هماغسې په ځای پاتې دي. یوازې دا نه ده، قاچاق کول یا په هغه کې برخه لرل او رشوت اخېستل او اختلاس کول په شوروي مشاروانو کې په دغو تېرو اتو کالونو کې هر هغه افغاني کارمن ته چې له هغو سره د وظیفې له مخې په تماس کې دی، د ورځو په کیسو بدل شوي دي. د یوه نظامي منصبدار په قول ده په خپله په هرات کې د یوه روسي مشاور ښځې ته د سروزرو د غاړه کۍ په اهدار کولو سره خپل یو ګوندي ډاکټر ملګری اعدام نه بچ کړی دی. په پلچرخي کې داسې ډېر افغانان په دې تور بندیان شوي چې د مقاماتو په قول دوی له شوروي مشاورینو سره په قاچاق کولو او داسې نورو غیرقانوني قضیو کې برخه لرلې ده. داسې کېسې ډېرې اوربدل شوي دي چې ځینې ګوندي کسانو او منصبدارانو د ترفیع په غرض خپلې یا پردۍ ښځې شوروي مشاورینو ته استولي دي. په معکوس ډول روسي مشاورینو د دې لپاره چې دلته یې د خدمت دوره اوږده شوې وي، خپلې ښځې د متنفذو افغانانو غېږو ته ورسپارلې دي.

## دولتي ملکي ماموران

اختلاس کول او له مراجعینو څخه بډې اخېستل په دغو وروستیو کالونو کې په ملکي کارمنو کې بېخي ډېر شوي دي. دغه ماموران په دې کار کې چندان ګرم هم نه بلل کېږي. د دوی معاش د هغو نظامیانو په تناسب چې دمخه یې یادونه وشوه، بېخي کم دی. د لومړۍ رتبې مامور معاش چې ممکن هغه ته د شل دېرش کلونو د خدمت په دورې کې ورکول کېږي، څه باندې شپږ زره افغانۍ (۴۰ ډالره) او هم یو کوپون دی؛ خو ټول ملکي

ماموران لومړۍ رتبه نه دي، ممکن په سلو کې پنځه يې لومړۍ رتبه وي. د دوی منځنۍ درجه مثلاً د څلورمې رتبې مامور ۳۴۵۰ افغانۍ معاش او يو کوپون لري چې دا ټول يې ممکن د دېرشو امريکايي ډالرو په شاوخوا کې راشي. دی به هرومرو يوه کورنۍ هم ولري چې ټول غړي به يې شايد شپږو تنو ته ورسيږي. فکر کېږي چې په سلو کې څلوېښت ماموران به خپل کورونه لري او شپېته نور به يې هره مياشت په کرايه ورکولو هم مجبوريږي. د افغاني قوي دود له مخې دوی به يو وخت بل وخت مېلمانه، سيالي گانې او هم به طبعاً ښادي گانې او غمونه هم ولري. دوا او درمل ته به يې هم اړتيا وي، که څه هم د دوی لپاره حکومتي بيمه شته او طبي سرويسونه وړيا دي. دا ټول د هغه په بوديجې باندې يو نه زغمېدونکی پېټی دی. د مامورانو په ځينو کورنيو کې ممکن دوه درې کسه نور هم د معاش خاوندان وي او اوس تر پخوا زياتې ښځې هم په دفترونو کې کار کوي؛ خو په دې حال يا به د کورنيو د غړو شمېر هرومرو زيات وي او يا به د نوي تمايل له مخې لويې او پراخې کورنۍ په هستوي يا وړ کورنيو ويشلې شوې وي. په هر حال د يوه رسمي مامور معاش هغه هم په دې قيمتۍ کې ممکن په مياشت کې د لسو ورځو لپاره کفايت وکړي او دی مجبور دی په مياشت کې د پاتې شلو يا پنځلسو ورځو ژوند له نورو لارو نه تامين کړي. که دی له پلاره پاتې شخصي او يا نور راز شته ولري، پرده به يې پرې کېږي او که نه ژوند به ورته له دوزخ څخه کم نه وي او دی مجبور دی له هغه واک نه چې د خپلې وظيفې په سبب يې لري اختلاس وکړي او بډې واخلي او څنگه چې په افغانستان کې يو دايمي په قانون متکي ملکي سرويس تکامل نه دی کړی او څنگه چې په دغه اوسني يو گوندي سيستم کې ټول حساس او د آمريت پوستونه د گونديانو دي، د اختلاس او رشوت غټه برخه هم د دوی ده. په دې وختو کې چې په په دوی کې نا مصئونيت احساس قوي شوی، رشوت اخېستل ډېر شوي او حتی منظم او معين شوی هم دی. د مثال په ډول څوک چې غواړي موټر ټکسي کړي، پنځوس زره او څوک چې وغواړي د درملتون اجازه تر لاسه کړي د يو لک په شاوخوا کې بايد رشوت ورکړي. د حکومت د ماهيت په سبب اوس د اختلاس لپاره زمينه تر هر بل وخت نه ښه برابره شوې ده. په دې چې يو خو حکومتي ادارو ته مراجعين لږ شوي او بله دا چې دولتي

فعالیتونه اوس تر هر بل وخت نه ډېر شوي دي. عمدتاً د همدغه اختلاس په وجه او تر هغه و روسته د نویو ګوندي مامورانو د بې تجربه توب او نالایقۍ په وجه او هم تر زیاتې اندازې د حکومتي واک د متمرکز کېدو او یا هم له حکومت سره د پټ مخالفت او کارشکنۍ په وجه ده چې د دولتي انکشافي پلانونو او په عمومي ډول د دولتي کارونو د بریالیتوب او موثریت اندازه تر هر بل وخت نه لږه شوې ده او دولتي کارونه سست او بې نظمه شوي دي. د ولایتونو او کابل تر مینځ او په عمومي ډول د ولایتونو تر منځ دفتري روابط او مکاتبې بېخي ځنډني شوي دي او په میاشتو میاشتو کې کوم ځل که وشي، د مثال په ډول د لغمان له ولایت نه د تېر کال له حمل نه تر اوسه پورې د څوارلسو میاشتو په اوږدو کې یوازې دوه مکتوبي پوستې کابل ته را رسېدلي دي. لغمان چې له کابل نه د اویا کیلومتره په شاوخوا کې فاصله لري، دغه حال وي، د نورو ولایتونو به څه حال وي؟

دا چې په دې وختو کې ملکي مامورین تر هر بل وخت نه زیات تقاعد غواړي او یا یو شمېر یې حتی په رسمي وختونو کې بل چېرې شخصي کارونه کوي او یا په دفترونو کې په نیم روغ او سست ځان هسې وخت تېروي او یا زیات شمېر یې له رسمي وخت نه د باندې واړه دوکانونه خلاصوي، ترکاري خرڅوي، ټکسي ګانې چلوي او داسې نور کارونه کوي، د دوی د بد حال ښکارندوی دی. دغه موضوع په عین حال کې له حکومت سره د مامورینو نه همکاري هم څرګندوي. د دغې برخې په پای کې به دا سمه وي چې وویل شي چې اوس د پیسو لپاره دولتي مقام ګټل او له دغه مقام نه د پیسو د پیدا کولو لپاره غیر قانوني اجراآت کول او په ټولو حالاتو کې د ایډیالوژۍ او نورو دغسې پرنسیپونو او مفاهیمو پروا نه ساتل د پرچمي حکومت په تېره د لوړو ګوندیانو یوه څرګنده خاصه ګرځېدلې ده.

## قیمتي او شغلي ډلې

ددغې بې سارې قیمتۍ په شرایطو کې چې د معاش خورو او ګوندیانو دغسې حال وي، د بې معاشه خلکو، متقاعدینو او تر هر څه زیات د کونډو او نورو بې سرپرستو ښځو او میندو حال به څرنګه وي؟ لومړی باید د دې یادونه وشي چې دغه اوسنۍ قیمتي او په حقیقت کې هره قیمتي د کسبګرو،

سوداګرو، دوکاندارانو او داسې نورو اجتماعي او شغلي ډلګيو ملاګانې د نورو ډلګيو د ملاګانو په پرتله ځکه نه شي کرڼپولی چې په قيمتی سره د دوی د اجورو او متاعو قيمت يا په بل عبارت د دوی عوايد هم په متناسب ډول لوړ ځي او د دوی لپاره د معادلې آخري نتيجه لږ و ډېر هماغه وي چې پخوا وي. دوی يا د دوی ډېر ډلګي د قيمتی په شرايطو کې هغه هم په داسې حال کې چې لکه اوس چې دلته د نرخونوکنټرول نه وي، ډېرې ګټې هم کوي. دوکانداران، سوداګر، قصابان او داسې نور په دې ډلې کې راتلای شي. دوی په هغو وختو لکه اخترونو کې چې د لګښتي اموالو لپاره سمدلاسه تقاضا ډېره شي، نرخونه لوړوي. د عين متاع نرخونه په دوو څنګ تر څنګ دوکانونو کې هم توپير لري. د حساسو بارو ميترو په څېر چې ډېر لږ تغيير هم په کې څرګندېږي، دوی هم د خپل متاع نرخونه حتی له يوې ورځې نه بلې ورځې ته په خپله ګټه لوړوي، بې له دې چې د اصل قيمت او نرخ په باب د کوم مناسب تناسب پروا ساتل شوي وي. مقامات د جنګ په اوسنيو شرايطو کې له دې نه عاجز دي چې د متاعو لپاره د اصل قيمت او نورو مصارفو او عاملينو ته يې د لازمې ګټې په ملاحظې سره مناسب نرخونه وټاکي او پلورونکي د هغو په رعايت مجبور کړي. د جوزا د مياشتې په لومړۍ لسيزې کې کابل ښاروال د ښارنوالۍ په هدايت او جدي ګواښ سره هم و نه شو کولی چې د ښار قصابان دې ته وهڅوي چې د پسه غوښه کيلو ګرام په ١٦٠ افغانۍ او د غوايي غوښه کيلو په ١۴٠ افغانۍ وپلوري. دغه حکم هم حاکمانه و او هم په داسې دقيق حساب بنا نه و چې د اصل قيمت او نرخ تر مينځ کوم مناسب تجارتي تناسب مراعات شوی وي. قصابان له څو ورځو دوکانونو له تړلو يا يو راز اعتصاب نه وروسته پرې ښوول شول چې د پخوا په څېر معامله وکړي، يعنې د پسه غوښه کيلوګرام په ٣٠٠ افغانۍ او د غوايي غوښه يو کيلوګرام په ٢٠٠ افغانۍ وپلوري. هغه کسان چې په يوې يا بلې ساحې کې پانګې په چلند کې اچوي او په خپله او ورسره د کورنۍ غړي يې تنظيمول کوي، بايد هرومرو ګټه ولري، خو دا ګټه بايد مناسبه وي. مناسبه ګټه ترلاسه کول د ورو متشبثينو مثلا قصابانو لپاره دا معنی لري چې دوی به د مناسبې ګټې د ترلاسه کولو په منظور د زياتېدونکي تقاضا د رفع کولو لپاره د خپل تشبث او فعاليت ساحه لا هم پراخوي. نتيجه به دا وي

چې په ټولنه کې به د مجموعي اقتصادي فعالیت ساحه پراخېږي، پانگه به ورسره په هماغه تناسب ډېرېږي او په چلند کې به وي. البته ستر مشکل د مناسبې گټې تنظیمول دي چې هغه په اصل کې په جامعې یعنې په ما او تا، مقاماتو او هم په پلورونکو پورې اړه لري. له بده مرغه واړه متشبثین یا لږ تر لږه د هغو یوه برخه هغه هم د جنگ، قیمتۍ او د یو راز موجودې په خپل سرۍ او د مقاماتو د ضعف په اوسنیو شرایطو کې د شخص حرص او گټې تر اغېز لاندې تر دې اندازې کېږي چې د غیر غوښتنې یعنې د جامعې یا زما او ستا او نورو انسانانو پروا نه کوي، نه یوازې نرخونه له حد نه زیات لوړوي، بلکې پر هغه سربېره کله کله د نه اورېدلو کیسې هم تر غوږو رسېږي. د مثال په ډول په دې نږدې ورځو کې له دوو بېلو بېلو منابعو نه په لږ غیر مهم اختلاف سره اورېدل شوي چې په کابل کې د یو کبابي په دوکان کې د انسان غوښه عرضه شوې او قضیه په څارنوالۍ کې تر تحقیق لاندې راغلې ده. په همدې ډول د یوې بلې تر اوسه یوازنۍ منبع په قول یو بل چاینکې والا د ماشوم غوښه په چاینکې کې پخه کړې او عرضه کړې ده. د قحطۍ او پوره نا چارۍ په شرایطو کې دغسې پېښې د فهم او حتی زغم وړ ښکاري. مثلا د دوهم جنگ په بهیر کې چې جرمنیانو لینن گراد کلابند کړی و، روسانو د مړو انسانانو غوښې خوړلې. یا په ۱۷۲۲ کې چې افغانانو د فارس اصفهان کلابند کړی و، کلابندیانو د سپیانو او پیشو گانو غوښې خوړلي دي؛ خو د گټې کولو په مقصد د خوراک لپاره د انسان غوښه عرضه کول یا دغسې نورې نا انساني چارې ترسره کول، په داسې حال کې چې لږ تر لږه تر اوسه پورې له قیمتۍ نه غیر له لوړې او قحطۍ څخه انسانان تلف شوي نه دي، په هېڅ دین او اخلاق کې په هېڅ وجه مجاز او د زغم وړ نه گڼل کېږي. لکه څنگه چې جامعې د جوگیانو د انسان خوړلو دود نه دی زغملی، که څه هم تر اوسه پورې یې پوره ورک کړی نه دی، لکه چې د یوې باوري منبع په قول د شاهي په وروستیو کلونو کې د تخار په ولایت کې د جوگیانو له خوا یو ځایي غیر جوگي ماشوم د همدغه مقصد لپاره تلف شوی و. بله دا چې ویل کېږي چې جوگیان چې ځینې خلک یې په غلطه له چلوسانو سره گډوي، هدېرې نه لري او افغانان یې د «آدم خورو» په نامه یادوي؛ خو د ډاډ وړ خبره ده چې دغسې نا انساني پېښې ډېرې نادرې دي او هغه له

عمومي بهير نه خرګند انحراف ګڼل کېږي او جامعه يې په ځغرده ځپي. له بلې خوا کې رسمي مقامات په ظاهر کې د جامعې په خير تشبثات واړه وي که لوی، له سره تر پايه پورې په خپل لاس کې واخلي، د دې ويره حقيقي کېږي چې يو څو به په عمل کې لکه څنګه چې په تجربو سره ثابته شوې، د دغه کار له عهدې نه وتلی و نه شي او که له عهدې نه يې تر څه حده وتلی هم وشي، فعاليتونه به يې اقتصادي نه وي، يعنې په عمومي ډول د ټولنې په تاوان به وي، لکه چې زمونږ په ملک کې حکومتي تصدي ګانې ټولې غيراقتصادي يعنې په تاوان کې دي. د مثال په ډول د يوې باوري منبع په قول په ۱۳۶۰ او ۱۳۶۱مو کلونو کې د غزني د سرده په دولتي فارم کې يو من غنم په (۱۴۰۰۰) افغانيو تمام شوي وو. دا به شايد يو افراطي مثال وي خو د خبيرو افغانانو په قول افغان ترکانې، ملي بس، د جنګلک فابريکه او داسې نورې دولتي تصدي ګانې او حتی د ننګرهار د پروژو فارمونه ټول په تاوان کې دي او يوه يې هم اقتصادي نه ده. بله دا چې که دولتي مقامات تشبثات د ځان کړي، بيا به په هر څه خېټه اچوي، دومره به پنډ کېږي او پياوړي کېږي چې په پای کې به زما او ستا او د هر چا او هر څه واک د ټولنې جامعې په نمايندګۍ د يوې وړې ډلې په لاس کې وي، په بل عبارت سياسي، نظامي او اقتصادي قوت به بس د يوې وړې ډلې په لاس کې متمرکز کېږي او مطلقيت او ټوټاليټيرينزم (د هر څه خپلولو يا کل اختياري سيستم) به د جامعې خاصه ګرځېدلې وي او آزادي او دموکراسي به چې ژوند يې له هغو نه انساني مفهوم نه شي لرلی، هسې پوچ او پروپاګندي ګلمات وي، لکه چې په سوشلستي هېوادونو کې همدغسې دی. خبره چې لنډه کړو که څه هم لا دمخه يو څه اوږده شوې، په تکرار به ووايو چې د وطن په موجودي قيمتۍ کې تجارتي او سرويسي او شغلي ډلې خلک نه دا چې د نورو په شان په ملا نه دي کړوپ شوي، بلکې تر پخوا شتمن شوي هم دي. خو له دې سره جوخت د دې ويل هم ضروري دي چې دوی د حکومت له خوا خپلو شتو څخه هېڅ ډاډه نه دي. په تېرو نهو کالونو کې مقاماتو دوی دومره وهلي، ځپلي، چور کړي، فراري کړي او وژلي؛ چې ممکنه نه ده دوی تر ډېره وخت په پخواني حال راشي او بيا توليدي او سرويسي چارې په ډاډمن زړه دومره ډېرې او پراخې کړي چې هم

دننی اړتیاوې پوره کړي او هم له باندنیو سره سیالي وکړي.

## د قیمتی نورې ناوړه اغېزې

د بحث مرکزي ټکي ته چې بیا مخ واړول شي، و به ویل شي چې دغې بې سارې قیمتی تر ملکي مامورینو؛ په کراتو زیات متقاعدین، کونډې او بې سرپرستې ښځې او په خاص ډول هغه پراخه ډله زهیر کړي چې د وزګارو په نامه خلاصه کېدلی شي او په ښارونو او په تېره په کابل کې غونډ شوي دي. د دوی بد حال له دې نه اټکل کېدلی شي چې دوی د وظیفې د نه لرلو په وجه د عاید کومه منظمه منبع نه لري او ډېری یې عسکر شوي دي. د وزګارتیا د رفع کولو لپاره په عمل کې د حکومت غټ پروګرام له اتلس کلنی څخه تر څلوېښت کلنی پورې عسکري خدمت ته د افغانانو جلبول دي. خو سره له دې چې حکومت عسکرو ته ښه معاش ورکوي، بیا هم د دوی ډېر شمېر دغه خدمت ته نه حاضرېږي. دوی یا د باندې هجرت ته ځي یا یې په اطرافو کې د عسکر ګرېزو لیکي پیاوړې کړې دي. یو شمېر نور یې د خاد جاسوسان شوي دي. نور یې په هوټلونو او داسې نورو ځایونو کې کار کوي. معیوبان او ناروغان یې ګدایي کوي او د وروستیو شمېر اوس تر هر بل وخت نه ډېر ښکاري، په دې چې اوس د ښار په څنډو کې ډېر ګدایان له شخصي کورونو نه هم خیرات غواړي. په حکومتي مرستون کې یو شمېر دغسې کسان په تېره معیوبان ټول شوي او هلته ورته کسبونه هم ښدل کېږي. د تجمع هغه ځایونه چې پخوا به ورځني اجوره ګان او غریبکاران هلته هر سبایي لېدل کېدل او له هغو ځایونو څخه به د کار لپاره بېول کېدل، اوس له دغسې کارګرو څخه پوره خالي دي. هم په خپله د دوی په شمېر کې کمی راغلی او هم د شخصي کارونو په تېره د ساختماني کارونو د لړوالي په نتیجه کې د هغو لپاره تقاضا نږدې صفر شوې ده. سره له دې همه په جامعه کې او په خاص ډول په ښارونو او په ډېره ځانګړې توګه د کابل په ښار کې د وزګارو شمېر پوره محسوس دی. په داسې حال کې چې په هغه ډله خلکو کې چې ښه عایدات لري، د پیسو د لاس ته راوړلو لپاره له هرې ممکنې ناجایزې لارې نه په پراخه توګه استفاده کوي. لکه چې دمخه یې یادونه وشوه، هېڅوک دې په دې فکر نه کوي چې ددغه ملک وزګار

جامعې او سیستم وهلي بې شتو انسانان به د مرګ په انتظار لاس تر زنې ناست وي او له غلا، کیسه برۍ، مرده ګاوۍ، فحاشۍ، جاسوسۍ او داسې نورو غیر مجاز او غیر اخلاقي کارونو نه به ډېره کوي او د رسېدلو انسانانو په خبر به دوی د اخلاقي، مذهبي او مدني ارزښتونو په رڼا کې د ملایکو په شان ژوند کوي. په دغو وزګارو کې دغسې کسبونه رواج لري، لکه یو شمېر دغسې کسبونه چې د ټولنې د لوړو او ښکته طبقو په غړیو کې رواج لري. تعجب په دې کې دی چې جامعه دغو بېچاره ګانو ته چې د خپل قوت لایموت لپاره جرمونه کوي، درنې جزاوې ورکوي، خو هغه نور چې د جامعې یعنې د ټولو په ضرر لایموت لپاره نه؛ بلکې د ژوند د ښه کولو او سپما لپاره جرمونه کوي او د لاسته راوړل شویو شتمنیو له یوې جزئي برخې څخه ما او تا او نورو ته غوړ غوړ ناري ورکوي او واک لرونکو ته رشوتونه منې او په یوه او بله نامه ورسره مرستې کوي، د ډوډمۍ مارو په خبر ساتل کېږي او ورته لا هم موقع ورکول کېږي چې له لوړو دولتي مقامونو څخه جامعه لا هم متضرره کړي. زمونږ د ټولنې دغه حقیقت ځرګندوي چې د عصري کېدو او ورسره د بې ساري ګرانۍ او جنګ او نا مصئونیت او انارشۍ په اوسنیو شرایطو کې اجتماعي ارزښتونه، اجتماعي وجدان او د فروید په قول سوپر ایګو ( super-ego) د ځاني تمایل (ego) په مقابل کې اوس تر هر بل وخت نه زیات ناتوان شوي او مونږ د ډاروین د تنازع للبقا حیواني او وحشي پولې ته نږدې شوي یو.

( فاعتبرو یا اولی الابصار)

## د ښځو حال

دغه مفهوم به هلته لا ځرګند شي چې له انتظار سره سم د ګرانۍ په اوسنیو شرایطو کې د وطن د ښځو په موجود حال باندې هم نظر واچول شي. هر څوک پوهېږي چې ښځې د جامعې نیمایي برخه جوړوي، نو د ښځو موضوع په هرې جامعې کې بنسټیزه بلل کېږي. د سلیم عقل او منطق له مخې دوی باید له نارینه وو سره په هر لحاظ برابرې وي؛ خو په واقعیت کې نه پخوا دغسې وو او نه اوس دغسې ده. که څه هم په تېرو سلو کلونو کې ښځو په تېره په صناعتي شویو هېوادونو کې ډېر حقوق تر لاسه کړي او له

نارینه وو سره د ښځو د برابرتیا میلان د همدغې پېړۍ په بهیر کې تر هر بل وخت نه ډېر ځرگند دی، خو دا چې ښځې او نارینه به یو وخت د ژوند په عملي ډگر کې په هر څه کې سره برابر وي، په دې باب د نظر ځرگندول اوس پخوا له وخته دي. د انسان په تاریخ کې تر اوسه په اجتماعي لحاظ د ښځو او نارینه وو تر مینځ توپیر په ځرگند ډول موجود و، لکه چې په خپله د نارینه و تر مینځ هم اجتماعي نابرابري وه. د ژوندانه په ټولو اړخونو کې له نارینه وو سره د ښځو برابري او په همدې ډول د دوی ټولو تر مینځ هر اړخیزه برابري اوس یو انساني ایډیال دی چې گوندي انسان یوه ورځ دغسې لوړ مدني پوړ ته هسک شي.

## الف – عنعني حال

په افغانستان کې تر دې نږدې وختو پورې د کار د وېش د عنعنې له مخې په عمومي ډول ښځې د کور او نارینه د کور د باندې انسانان وو. له کور نه بهر چارې به ټولې د نارینه وو په لاس وې او د کور دننی چارې به لږ و ډېر په گډه د ښځو او نارینه وو امتیاز و. ښځو به دغه پرېکړې عملي کولې او په ورځنیو چارو لکه پخلي کولو، کالي مینځلو، جارو کولو، اولادونو زېږونو د هغه په روزلو او داسې نورو چارو بوختې وې. دوی په تېره په ښارونو کې او په هر حال د شتمنو ښځې به په عمومي ډول مخ پټې او په کورونو کلابندې وې. دغه بندیزونه په تېره په ځوانو ښځو او پېغلو چې «جنس لطیف» به ورته ویل کېده، په دې سخت وو چې دوی د بیگانه نارینه وو له سپکولو او ځورولو څخه په امن کې او په خپله د دوی تر وزرو لاندې مامونې وې. نارینه وو به خپلې ښځې د عزت، ننگ او ناموس بې جوړې قیمتي نښې او د خپل نسل د دوام وسیلې گڼلې؛ نو ځکه نارینه وو نه یوازې په خپلو ښځو د خپل واک درانده لاسونه غځولي وو، بلکې د دوی د شتمني، سره له دې چې د اسلامي شرع له مخې په خپله د ښځو وې، عملاً نارینه وو خپلې کړې وې. نارینه وو د ماندینې په کولو په غرض په ښځو پیسې اخېستلې او ورکولې او په دې برخه کې یې دوی د متاعو سطح ته کوزې کړې وې. د ښځو له خوا انحراف نه زغمل کېده او نارینه د دې لپاره ځار او تیار وو چې په حال کې خپلې ښځې وترټي، وځپي او ووژني. په نتیجه کې د نارینه وو لاس په ښځو ښه بر

او قوي و. د ښځو د حال دغه تصویر یو څه په ساده ډول بیان شو. په ښځو کې د سن په لحاظ د ژوند د طرز له مخې د بېلوبېلو قامونو د ځانګړو دودونو په سبب او د کورنیو د بېلوبېلو شغلونو له مخې اختلافات او ځانګړتیاوې وې، خو زمونږ د پېړۍ تر شروع پورې د ښځو عمومي حال همدغسې و[٢]. له هغه وروسته چې د عصري معارف له لارې نويو مفکورو او نويو ارزښتونو په جامعې کې ورو ورو ځای ومونډ او جامعه د خارجیانو په مخ تر هر بل وخت نه په پراخه اندازه پرانېستل شوه، د نورو بدلونونو تر څنګه د ښځو دغه عنعني محکوم حال هم مخ په اوښتو شو.

## ب – ښځې او اماني اصلاحات

د ښځو د حال د اصلاح په باب پاچا امان الله خان د دغې پېړۍ په دريمه لسېزه کې لومړنۍ عملي او رسمي ګام واخېست. يو څو رسمي ښوونځي يې ور ته جوړ کړل، حتی يو شمېر نجونې يې د لوړو زده کړو لپاره ترکيې ته واستولې. مخ لوڅې يې په کې رواج کړه او په خپله پاچا او ملکې د ښځو د حال د سمون سره په عمل کې مينه وښودله. خو ده د خپلو نورو اصلاحي کارونو په باب په دې برخه کې هم تر بيخکې کارونو څخه زياتې ننداري جوړې کړې او پارونې وکړې چې د هغو په نتيجه کې نارينه پاڅېدل، دی يې له ملک نه وشاړه، اصلاحي پروګرامونه يې ور ته شنډ کړل او ښځې يې يو ځل بيا د پخوا په څېر په کورونو کې کلابندې او مخ پټې کړې. د افغان جهان تر ډېره مهاله پورې بيا پوره د نارينه وو شو.

## ج – ښځې او ظاهر شاهي اصلاحات

د سر زوري امان الله خان تر تند او انقلابي چلند نه د افغان اجتماعي واقعيتونه په کراتو ټينګ او زورور ثابت شول او دغه واقعيت دېرش کاله وروسته د ښځو د مخ لوڅې او ځواک په دوهم پړاو کې مخلوع پاچا ظاهرخان او صدراعظم داؤد خان له خوا درک شو او رعايت يې وشو. په دې پړاو کې د ښځو مخ لوڅې چې د ښځو د معارف په نسبي تعميم سره لار ورته ښه هواره شوې وه، بې له نارو او ننداړو نه (په کندهار کې د يوې ناوړې پېښې نه غير چې لږ و ډېر ٦٠ تنه انسانان په کې تلف شول) په عمومي ډول په بري

سره عملي شو. نارینه وو مخ لوڅي ښځې په اروپايي جامو کې په روغتونو، ښوونځیو او حتی په دفترونوکې د نرسانو، ډاکټرانو، ښوونکو او دفتریانو په حیث ومنلې. دغه مخ لوڅي او ځواک ورو ورو د مشروطه شاهۍ په نسبي دموکراسۍ کې وده وکړه او بېخ یې ونیو او ریښې یې وځغلولې. د هغه په سیوري کې ښاریان څه چې اطرافیان هم په خپله خوښه حاضر شول په خپلو لرې اطرافي کلیو او بانډو کې د خپلو لوڼو لپاره د ښوونځیو په جوړولو او په عمومي ډول معارف ته د اعانو او ځمکو ورکولو د کار په کولو کې په ټول هېواد کې ونډه واخلي. دغه نهضت په ټول ملک کې خپور شو او خلکو په عمل کې ثابته کړه چې که عصري معارف د ښځو لپاره هم په ښه سلوک یعنې د دوی د عنعنې او دود و دستور سره سم عملي شي، دوی یې ملاتړي دي. د ښځو انقلاب بېخ وموند او پراخ شو او د هغه په برکت یو شمېر ښځې وزیرانې او د پارلمان انتخابي غړې شوې او تعلیم موندلو ښځو په دې ډول له نارینه وو سره یو ځای د وطن په ابادۍ کې په اساسي ډول د یو څو ناوړو پېښو باوجود برخه واخېسته او د ښځو په هسکېدو سره د ټولنې عنعني ښه د تل لپاره واوښته.

### د- د ښځو حال د غوايي له کودتا نه وروسته

د ثور له کودتا نه وروسته په تېره په اوسنیو سختو شرایطو کې د ښځو په دغه انقلابي ځواک کې داسې تور غټ ټکي ځرګند شول چې افغان ولس یې یو ځل بیا د ننداره وال امان الله خان د دورې په شان سخت پارولي دي. د ښځو نهضت به چې اوس یې بېخ ښه ټینګ او پراخ دی ممکن په ځای پاتې وي، خو باندنۍ ښه به یې په ډېر قوي احتمال واوړي.

د مشروطه پاچايۍ د دموکراسۍ په شرایطو کې چې سیاسي ګوندونو د «جریانونو» په نامه وده وکړه، یو شمېر نجونې هم د هغوی غړې شوې، خو هغه کوم تنظیم چې اناهیتا راتب زاد د خلق دموکراتیک ګوند تر وزرو لاندې د ښځو دموکراتیک سازمان به نامه مینځ ته راوست؛ د تنظیم، ترکیب او غړیتوب په لحاظ تر نورو ډېر ځرګند شو. هر څوک پوهېدل چې دوی روس پالي کمونیستانې دي؛ خو څنګه چې دوی محدودې کابلۍ یا کابلۍ شوې ښځې وې او څنګه چې هر څوک یا نردې هر څوک په دې فکر و چې

ممکنه نه ده په افغانستان کې کمونیستان، هغه هم پرچمي کمونیستان د حکومت واکمن وګرځي، د یو څو عصري نجونو په مخونو او کالیو باندې د تېزاب له اچولو نه غیر نو نو چا له ښځو سره غرض و نه کړ، خو د کمونیزم ضد روحیه یو خصوصاً د مشروطه پاچايي په وروستیو کالونو کې په ټول ملک کې یو ځل بیا ژوندی او ډینامیکه شوه او د بدنامې کودتا په راتلو سره د دواړو متخاصمو خواوو تر منځ مخالفت تر آخري حده پورې شدید شو. رسمي ګوند تر کودتا، مخصوصاً د روسانو تر تېري وروسته یعنې څه وخت چې د روس په زور یې خپلې چپې مفکورې ښکاره کړې، د هغو په تطبیق او د حکومت په استقرار کې یې د ښځو د سازمان له غړیو نه په پراخه توګه ډول ډول سیاسي او پروپاګندي کارونه واخېستل او هغوی ټولې یې نه یوازې د خپل حکومت؛ بلکې د روس د سیاست ښکاره کړې او ننداره ییزې آلې وګرځولې، لکه څنګه چې تنکي او خام ځوانان او ځوانانې یې په خپلې ایډیالوژۍ کې تنظیم کړلې. د ښځو سازمان نور نو د پخوا په شان یوازې اجتماعي او تربیتي سازمان نه و، بلکې په ښکاره ډول په یوه سیاسي سازمان بدل شو. په دې برخه کې حکومت دومره مخ ته لاړ چې د خپلو مسلمانو مخالفینو او لویدیځو هېوادونو په ضد په رسمي ترتیب شویو خیاباني مظاهرو کې یې دغه نجونې مخکښې وګرځولې تر څو په هغو سره احساسات وپاروي. یوازې دا نه وو، حکومت د خپلو ګوندي نجونو په وسیله د الحاد او نورې کمونیستي مفکورې په ښوونځیو، حزبي سازمانونو، د سواد د زده کړې په کورسونو او داسې نورو کې براﻻ خپرولې. په هغه محافلو کې چې په وزارت خانو او نورو ادارو او سازمانونو کې یې د هنري ډلو په نامه تنظیم کړي وو؛ نجونې یې د خپل ملاتړ د زیاتولو په منظور په هغو کې داخلې کړې. لږ تر لږه په ګوندي حلقو کې یې ځوانان او ځوانانې د یو ځای کېدو لپاره په آزاد ډول وهڅولې، لکه څنګه چې دغه کار اول په شوروي اتحاد کې د اکتوبر تر انقلاب وروسته په پراخه پیمانه شوی و او تر ۱۹۳۷ پورې یې دوام وکړ. سربېره پر دې د کابل حکومت له دې نه عاجز شو چې افغانۍ ښځې د روسي سرتېرو له تجاوز نه محفوظې کړي. په کابل کې ډېر مینې او پلرونه د خپلو نجونو او حتی نارینه د خپلو ښځو په باب اندېښمن شول او ډېرو یې هغوی تر سخت دسپلین لاندې ونیولې. په داسې حال

کې چې د پرچمي نجونو او حتی مېرونبو ښځو او روسي مشاورينو د يو ځای کېدو په باب رنګ رنګ پارونکې آوازې په پرلپسې ډول تر غوږو رسېدلې او د جلال آباد يو شمېر ګوندي بلاربې پېغلې په روغتونونو کې جراحي شوې. په دې باب د ليکلو لپاره ډېر څه شته، خو دلته دومره بس ښکاري. ګوندیانو به د دغسې آوازو په رد کې استدلال کاوه چې افغانان هم په شوروي اتحاد کې له روسي نجونو سره تر دې ډېر ښه وختونه تېروي. دلته په واقع کې د دوو متضادو کلتوري ارزښتونو ټکر وو او بېچاره ښاري پرچميان سخت وغولېدل. روسي ښځې، مېرونبې دي که پېغلې، سستې دي او په دوی کې دا کومه بد اخلاقي نه ده، يا لږ تر لږه ټولنه نه پاروي. روسان د افغانانو د ډېر اوږده تاريخ په پرتله په خپل لنډ تاريخ کې همدغسې وو. د دوی عظيم اکثريت تر ١٨٦١ پورې قانوني سرفان يا نيمه مريان وو او د سرفانو ښځې او لونړې د اشرافو (بويارو) د پالنګ تياري او بې بازخواسته ملګرې وې. په تېرو دوو جهاني جنګونو کې په ميليونونو روسي پېغلې بې ميرو پاتې شوې او په ميليونونو پېغلې يې بې مېړو پاتې شوې. روسان د ناموس په مفهوم نه پوهېږي، خو په افغانستان کې عمومي ذهنيت نه يوازې په اطرف کې، بلکې په ښارونوکې هم د نارينه وو او ښځو غير قانوني يو ځای کېدل، هغه هم له ملحدو او متجاوزو روسانو سره هېڅ نه مني او نارينه د ناموس په سر د قربانۍ تر آخري سرحده پاروي. د ناموس په باب د افغانانو دغه ذهنيت د دوی د ډېر اوږد تاريخ او د سترو دينونو اخلاقي ميراث دی چې په دغه هېواد کې تېر شوي دي. د ناموس په باب ښاري پرچمي يا په دقيق ډول اناهيتايي – کارملي ارزښتونه له افغاني ارزښتونو څخه سوا او بېګانه دي. په هغه څه چې افغانان سر ورکوي، دوی ته ارزان او حتی بې ارزښته دي. دا د روسانو لنډپاري او سرزوري ده چې د دغو پرچميانو خيال په ټولو افغانانو کوي او هڅه کوي چې خپل کلتوري ارزښتونه په افغانانو باندې ومني.

### په ښځو باندې د قيمتۍ او جنګ ناوړه اغېزې

د ښځو ځواک د غوايي له کودتا څخه راهيسې نه يوازې د عامه خلکو په نظر کې سپک شوی، بلکې د جنګ او قيمتۍ په سبب په نورو اړخونو کې ډېر زيانمن شوی هم دی. د جنګ د اوږدېدو او د حکومتي عمالو په

تېره د نظامي منصبدارانو په وژل کېدو سره په زرګونو ښځې کونډې شوې او اولادونه يې بې پلاره يعنې بې سرپرسته او بې ګټندوی پاتې شوي دي. حکومت د وژل شويو منصبدارانو کورنيو ته د هغوی پوره معاش او کوپون ورکوي او يتيمان يې په دولتي وړکتونو او پالنځيو کې تر کمونيستي روزنې لاندې هم نيولي دي او د جنګ يو شمېر کونډې يې په خصوصي او دولتي تصدي ګانو، کارخانو او دفترونو کې مقررې کړي هم دي. ځينو ته يې حتی دولتي اپارتمانونه هم ورکړي دي او ښځينه کارګرو او کارمنو ته يې د ولادت په دوره کې يو څه امتيازات هم ورکړي دي. که د ښځينه ښوونکو ډېروالی چې د نارينه ښوونکو د لږوالي په سبب مينځ ته راغلی، پرې علاوه شي، و به ويل شي چې اوس تر هر بل وخت نه زيات د ښار په ښځينه کارګرو او کارمنو کې څرګند ډېروالی ليدل کېږي. خو په مقابل کې بايد په نظر کې ونيول شي چې کونډيتون ډول ډول مصيبتونه له ځان سره مل لري چې په هغو کې د اخلاقي فساد او يتيمانو ډېروالی بېخي دردوونکي اجتماعي مرضونه دي. بله دا چې حکومت نه يوازې د غير ګوندي کونډو او يتيمانو لپاره، بلکې د خپلو ګوندي او نظامي کونډو او يتيمانو لپاره هم، هغه هم د قيمتي په دغو سختو سختو شرايو کې د ژوند وسايل برابرولی نه شي او د هغو لپاره چې يې تر څه حده برابر کړي، کفايت نه کوي. په دغو جنجالونو باندې چې د بې وزلو بنديانو د ښځو او اعدامي بنديانو د کونډو او د هغو د کورنيو ستونزو په تېره د فاحشو جنجالونو علاوه شي، ويل کېدلی شي چې هغومره کړاوونه او مصيبتونه چې د غوايي له کودتا څخه وروسته د ښځو په برخه شوي دي، په هېڅ وخت کې د افغانستان ښځو ته متوجه نه وو. په کابل کې دا يو برالا او هر چاته څرګند پټ راز دی چې اوس د فاحشو او دلالانو شمېر زيات دی.

په يو روايت سره د ۱۳٦۲ کال په ميزان کې د کابل د ښار د فاحشو شمېر ۷۰۰ او د بل روايت له مخې اوس ٦۷۰۰۰ تنو ته جګ شوی دی. وروستۍ شمېرنه به سمه نه وي، لکه چې دغسې شمېرنې په دې ملک کې په عمومي ډول سمې نه دي، خو د فاحشو د شمېر په زياتوالي کې هېڅ شک نشته. د تعجب وړ خبره دا ده چې د پرچمي حکومت په دوره کې د کابل په لاهوري دروازې کې د بېلو بېلو روايتونو له مخې د فاحشو په څېر تنکي هلکان هم د ځان خرخولو لپاره دلالان او تنظيم لري. دا سمه ده

چې فاحشې به په زیات شمېر له نورو ښارونو مثلا د مزار له ترکمن آباد، د کندهار له توپخانې، د لشکرګاه له کارته لګان او د ګرشک له سیاه ټانک څخه چې د فاحشو خاص ځایونه وو او هم د هرات له ښار نه د مجاهدینو د فشار په سبب کابل ته راغلي وي او د هغو په شمېر کې به یې زیاتوالی راوستی وي، خو په دې کې شک نشته چې په خپله په دغه ښار کې د جنګ شرایطو د کونډو، فاحشو، بې سرپرسته، بې ګټندویو او بې وزلو ښځو په شمېر کې څرګند زیاتوالی راوستی دي. اوس چې په ښار کې ژوند ګران شوی، د دغسې ښځو په شمېر کې هم زیاتوالی راغلی، چې په خپله د ژوند کولو او یا د خپلو بې وزلو اولادونو د تامینولو په غرض په داسې حال کې چې نورې مزدورۍ ورته نه پیدا کېږي، د عرضه کولو یوازینی شته یعنې خپل ځانونه د خپلو خریدارانو غېږو ته د پیسو په بدل کې سپاري او په کورونو، سرایونو، اپارتمانونو او ارایشګاوو او داسې نورو ځایونو کې په پټه فحاشي کوي. ویل کېږي چې د خیر خانې په پنجصد فامیلي نومې پروژه کې چې د وژل شویو ګوندي منصبدارانو او کارمنو د فامیلو د هستوګنې لپاره نوې جوړه شوې ده، د فاحشو نوی بازار په ښایسته لوړه سویه چالان دی. د فاحشو سره د خاد له لارې د حکومت یوازنۍ مرسته دا ده چې د هغو یو شمېر یې د پیسو په مقابل کې جاسوسانې کړي، لکه چې ډېر ټکسي والا یې د جاسوسۍ لپاره ګومارلي دي.

# دریم فصل

## د هیواد د کشالې په باب بحثونه

**مقدمه:**

اوس ددې وخت را رسیدلی چې د هیواد په ډیرو غټو موضوعاتو باندې یو عمومي نظر واچول شي او بحث پرې وشي.

هیواد د غوایي تر کودتا پورې د خپل اقتصادي انکشاف په بهیر کې په بیړه او مخ په وړاندې روان وو. عمومي حال یې د قناعت وړ وو، که څه هم چې نیمګرتیاوي یې ډیرې وې او د نړۍ د بېرته پاتې هیوادونو په قطار کې راته او مخصوصاً په سیاسي ډګر کې نارضایتونه عام وو.

د کرنې پخوانی وضعه:- د کرنې په برخه کې د مځکو د اصلاحاتو پروګرام بې له دې چې اجتماعي کړکېچ پیدا کړي، بیخ نیوه او د مترقي مالیاتو پروګرام داسې سنجول شوی و چې لویو فعالو او متشبثو مځکوالو د زراعت په میکانیزې کولو باندې پیل کړی وو، ویل کیږي چې یوازې د هلمند په ناوه کې نیږدې دیارلس سوه زراعتي ټراکټرونه په کار اچول شوي وو. البته عاطل او نا نوښت ګر مځکوال هم په شمېر کې کم نه وو. دوی د عنعنې له مخې بس د مځکو حاصلاتو ته د عنعنوي راوبطو له مخې سترګې نیولې وې . له دوی نه ډیرې دومره ډیر دمالیاتو ترفشار لاندې تللې وو چې مجبور وو خپلې مځکې د مالیاتو په بدل کې حکومت ته پرېږدي. واړه مځکه وال او اجاره ګر، په تېره هغوی چې ښارونو، لویو کلیو او لویو لارو ته نیږدې پراته وو د اصلاح شویو تخمونو او کیمیاوي سرې په برکت چې تازه یې په پراخه پیمانه رواج

موندلی وو مخ په غوړېدو او شتمن کېدو وو. د دغسي مځکو خاصلات، په تېره د هغو مځکو خاصلات چې لویو لارو ته نېږدې پرتې وې، تر پخوا ځو ځله ډېر شوي او ورسره د مځکو بیه هم لوړه تللې وه. په داسې مځکو کې د ښارونو د اړتیاوو لېږي کولو په خاطر مخصوصاً ترکاري باب (گلپي، پیاز، کچالو، رومي بانجان او داسي نور) مروج شوي وو چې په قیر شویو سړکونو باندې په ډېر لږ وخت کې آن لېرې لېرې ښارونو ته وړل کېدل. په همدې ډول د باغونو جوړولو، مخصوصاً د مېو د باغونو جوړولو هځه د مشهور ډاکټر عبدالوکیل په نوښت او هځونې سره، په کابل زمین کې ښه قوي شوی وو، د کرنې د وضعي په محصوص او ځرګند ښه والي سره کلي ښارونو ته ډېر نېږدې شوي او ورپورې تړل شوي وو؛ او ټول ملک د یوه تړلي اقتصاد واحد شکل ځان ته غوره کړی وو.

## د صناعت پخوانی حال:

په صناعتي برخه کې هم حال لږ و ډېر همدغسي وو. خصوصي متشبثین د لګښتي مالونو د تولید د پاره د حکومت له کرېډېټ نه، بحرمند وو؛ او یو لړ نورو امتیازات هم ور په برخه شوي وو چې په هغوی کې په ځو لومړیو کالونو کې له مالیاتو ورکولو نه معافي یې ډېر مهم وو.

له دې امله د لکښتي اموالو د تولید کارخانې یې مخ په انکشاف او زیاتېدو وې. واړه خصوصي ورکشافونه ډېر شوي وو اوپه نویو قیر شویو لارو او سړکونو کې شخصي موټري ترانسپوټ دومره ډېر او فعال شوی وو چې دمالونو، انسانانو او فکرونو انتقال د ښه امنیت په رڼا کې شپه او ورځ په بېړه چالان وو او د وطن ډېرې لرې سیمې لکه بدخشان، نور نو لېرې او ګوښه نه وې.

داخلي او باندني ټوریستان ورته په ډېر شمېر تلل او له دې سره جوښت ټوریستي صناعت ښه وده کړې وه او شخصي هوټلونه او انتیک بې شمېره ډولسالونه دوکانونه نه یوازي په ښارونو کې، بلکې په لریو اطرافي سیمو کې، لکه بلیان هم د مرخېیو په شان ډېرشوي وو. په دغو ساحو کې په خلکو کې داسې ډینامیزم او تحرک لیدل کیده ، چې بل هېڅ وخت لیدل شوی نه وو. له دې حال سره عنعنوي سیمیزو او قامي ځانګړتیاوو او

حصاصیتونو خپل قوت له لاسه ورکړی ، او په ځای یې یا د هغو دپاسه ملي او افغاني روحیه خوربده، او ټینگبده. په افغانستان کې د انکشاف او ابادي یو نوی دور شروع شوی وو، سره له دې چې دولتي پرمختیایي پروگرامونه چې په اوه کلن انکشافي پلان کې تنظیم شوي وو، چندان موفق نه وو ، او د انکشافي بودجې یوه برخه له یوه کال نه بل کال ته پاتې کېده، او د بې کفایته او نا نوښت گرو حکومتي لوړو کدرونو د رشوت او اختلاص په وجه د دولتي پروژو د انکشاف اندازه لوړه نه تلله. سره له دې هم عمومي اقتصادي وضع هم بده نه وه. نرخونه د عایداتو په تناسب پوره د زغم وړ وو. دیوه ډالر بیعه تر ۳۷ افغانیو هم ښکته شوي وه او حکومت ۴۵۰ میلیونه ډالر او ۲۵ ټنه طلا زخیره خوندي لرل. د سوداگرۍ د مجموعي فعالیت او حجم اندازه له دې نه ښه څرگندېدلی شي چې یوازې د کابل گمرک ورځني عایدات د ۳٦ او ۴۰ میلیونو افغانیو ترمنځ ښکته پورته کېدل، په داسې حال کې چې دغه رقم تر کودتا نه په روستیو کالونو کې د شپږمیلیونو شاو خوا ته ټیټ شو.

**د بدترۍ په لور انقلابي بدلون:**

د غوایي کودتا په راتلو سره د ټول هیواد چارې په انقلابي ډول خرابي شوې چې اوسنی حال یې په لنډ ډول په مخنکیو پاڼو کې بیان شو. دلته به دا اضافه شي چې د هیواد له پنځلس میلیونو وگړو نه چې په ۱۳۵۸ ه ش کې شیمرل شوی وو تر پنځو میلیونو نه زیات یا له درې تنو نه یو تن یې مهاجر شوی دی. ممکن تر یو میلیون پورې په جنگونو کې تر اوسه وژل شوي وي په غالب گومان چې د غوی له کودتا نه تر اوسه پورې تر څلوېښت زرو نه زیات بندي افغانان اعدام شوې وي. هغه جزاگانې چې تورنو بندیانو ته د اعتراف د ترلاسه کولو په مقصد ورکړای شوي، تر اخیري سرحد یعني په فزیکي لحاظ د بندي ښځي په فرج کې د سرې هگی او د نارینه بندي په مقعد کې د فانتا د بوتل ننه ایستل هم پکې شامل وو. په کومو سیمو کې محصوصا په ښارونو باندي چې د حکومت لاس بر وو د هیڅ چا مال، سر، کور او حتا د خلکو ناموس هم مسؤن نه وو. د بیان او نور راز فردي ازادي چې د انساني حقوقو ، او په واقع کې د انساني ژوند بنسټ شمیرل کیږي که څه په دغه وطن کې د لنډی مشروطه شاهي دورې نه پرته، هیڅ

وخت خوندي نه وو، په دغو تېرو کالونو کې په چنګیزي شدت او وحدت سره خورا منظم او څارپه زور زیاتي متکي ګوند او د خاد او اکسا او کام له لوري پرلپسې ډول ځپل کېده. په ډېره بېړه هڅه کېده چې د هر راز سیاسي او اجتماعي چارو په باب تصمیم نیول، د ګوند دواړه ډلګي په لاس کې انحصار وي هر راز فردي یا ډلیز کلامي او عملي مخالفت د هر چا له خوا او هري ناحیې څخه چې به وو، نه زغمل کېده دا ټول کارونه په ظاهر کې د انقلاب او خواریکښو خلکوته د خدمت په نامه خوپه واقع کې د شوروي ډوله یو ګوندیز او مرکزي الاصل مطلق ټوټیا لیټرین سیستم د ټینګولو په مقصد کېده چې هغه په سر کې به ده خلک دیمکرټیک ګوند د شوروي د ستر قوت په مرستي واکمن وي او د ټولنې د پاره به په انقلابي ډول د تګ لوری ټاکي خو دغه مقصد دپاره د حکومت ټول کوښښونه او د هغه ټول عمده سیاستونه، بې له کوم استثنا څخه، د مځکو د اصلاحات د پروګرام په شمول د ناکامي په بېلو بېلو درجو سره محکوم شول . لکه څنګه چې په تېرو پاڼو کې لنډه شرحه وشوه په شوروي کې د ګرباچف او په کابل کې د نجیب الله په هسک کېدو سره حکومت له ناکامی ورځي په شا روان شو په پاتي پاڼو کې د دغو ټکو په باب او د نارامیو په علتونو بحث کېږي.

## سیاسي بې ثباتي :

د دې ټولو نارمیو او بدمرغیو اصلي سرچینه د جامعي سیاسي بې ثباتي ده، دغه بې ثباتي د څه کم نیمي پیړۍ ارامی نه وروسته په ۹۷۳ م کې پیل شوه. په دغه کال کې په دولتي قدرت مین سردارمحمد داود لخوا د نظامي کودتا له غیري قانوني لنډي مګر لنډ پاري لارې نه د مشروطه پاچایي او قانوني حکومت په ړنګولو سره قدرت ته د رسیدو اصلي سرمشق کېښودل شو؛ او دغه ماډل تراوسه څو ځله په بېلو بېلو بڼو تکرار شوی دی. په پخوا وختو کې د قدرت مینان اس سواره قومي غټان او خانداني کسان وو؛ خو له هغه وخته چې نظامي دایمي پوځ ښه قوي او منظم او موټوریزي شوی نظامي صاحب منصبان د قدرت نیولو شوقیان او جاطلبان وګرځېدل.

په لنډ پاري سره د واک ګټلو مرض هر چېرې شته، خو په افغانانو خصوصاً پښتنو کې بې حده قوي دی. دلته د دولتي قدرت دلاري سمدلاسه

او پـه زيـات مقـدار اجتماعـي عـزت او شـتمني دواړه ترلاسـه کېـدلای شي، او څنګـه چـې د دولـت سـاحه ښـه پراخـه او برخـلاف د کارمېندلـو او ژونـد کولـو د پـاره د خصوصي سکتور ساحه تنګـه وه او څنګـه چـې پـه افغانانو کـې قومـي او د ترېوري رقابتونـه ډېـر شـديد وي، سـياسي لوبـې او حکومتـي قـدرت د دوی د پـاره خـاص انجـذاب لـري نـو ځکـه د محمـد داود خـان مـاډل پـه عـصري صاحبمنصبانـو او د سـياسي ګوندونـو پـه لويانـو کـې د قـدرت نيولـو حوصونـه، حرصونـه او نيمـي پټـې او نيمـي بـرالا مبـارزې او دسـيسې او پـه هـر حـال غيـر قانـوني کړنـې چالانـې او سختـې کـړي، خـو تـر اوسـه پـورې د عنعنـوي ټولنـې پـه دغسـې سياسي سـترې او ژورې خـلا کـې نـه کـوم يـو کـس، نـه کـوم ډلګـی، نـه کومـه ډلـه او نـه کـوم ګونـد د عمومـو لـه خـوا نـه منـل شـوي، او نـه پخپلـه د دومره قـوت خاونـد ګرځيدلـی چـې ځـان پـه ټـول ولـس ومنـي. خاليـګا هماعسي پـه ځـای پاتـې ده او د قـدرت ادعـا لرونکـې لـږ نـه دي او څنګـه چـې پـه ټـون يـا ناکامـه کېـدل د ځـان او پيروانـو د مـال او سره پـه قيمـت تمامېـږي د قـدرت مبـارزي اوس حيـواني او د ملت او ټولـو د پـاره خطرناکـه بڼـه غـوره کـړې ده. داسـې ښـکارې چـې لکـه ټولـو فيصلـه کـړې وي چـې پـه فزيکـې ډول سره د ناکامـو رقيبانـو لـه منځـه وړل هعـسي جايـز وي، لکـه څنګـه چـې پـه ځـنګلي داړونکـو ځنـاورو کـې رواج لـري.

پـه دغـه لـړ کـې د ملـت عـصري انقلابيـون پـه عمـل کـې تـر عنعنـوي جـا او مقـام طلبانـو د خپـل ټـول عمـر ډېـرو نېـږدې ملګـرو پـه نابودولـو کـې تـر ټولـو دمخـه تللـي دي لـه نېکـه مرغـه پـه دې وخـت کـې داسـې نښـې نښـانې څرګنـدې شـوي، چـې ښـېې پخوانـی پاچـا محمـد ظاهـر خـان بـه يوازينـی شـخص وي چـې ممکـن دغـه سـياسي خـلا چـې عـصري انقلابيونـو منـځ تـه راوسـتې ده، بېرتـه ډکـه کـړي. پـه دغـه حـال يـا پـه کـوم بـل ورتـه حـال کـې بـه مـوږ لـه ډېـرو درنـدو تاوانونـو او ترخـو تجربونـه وروسـته د سـليم عقـل او د نـورو ولسـونو لخـوا د پېړيـو پېړيـو تجربـه شـوی ډېـر عـام اصـل قبـول کـړی وي چـې مـلي قـدرت تـه د رسـېدلو انسـاني او مـدني لار يـوازې قانـوني او د ولـس د خوښـې او رضـا لاره ده او دا نـورې لارې سـملاسي او ناڅاپـي انقـلابي ګـرې هـسي تېـر ايسـتونکې او خطرناکـې دي او بايـد دتـل دپـاره پـه غوڅـه توګـه مـردودې وګڼـلی شي.

**بهرنی مداخلې اوسیاسي بې ثباتي:**

د باندنیو لاس وهنو هم د افغانستان په سیاسي بې ثباتۍ کې رول لوبولی او د دې مخه یې نیولې چې ملي حکومتونه د خپل ملک د خاصو شرایطو په رڼا کې وده وکړي.

دلته مطلب هغه مداخلې دي ، چې شوروي اتحاد له ۱۹۵۵ م نه را هیسې بېلو بېلو بڼو کړې دي ۱۹۵۵م کال هغه کال وو چې کابل ته د بولکانین خوروچف د سفر په دوره کې د شوروي حکومت د لومړي ځل د پاره د سلو میلیونو ډالرو یوه غټه قرضه افغانستان ته ورکړه او د پاکستان په مقابل کې د افغانستان لویان د پښتونستان د کشالې په سر وهڅول شول. ورپسې په تېره د افغانستان او شوروي ترمنځ د کلتوري تړون په کېدو سره په افغانستان کې د کمونیزم د خپرېدو لمنه پراخه شوه ، او وروسته د شوروي لویانو ، د محمد داودخان او پرچمي لویانو ترمنځ پوره روغ نیتي او یو راز اتحاد منځ ته راغی او شوروی د پرچمي لویانو له لارې نه یوازې د کمونیزم په خپرلو شروع وکړه؛ بلکې په ډېرو حساسو وختو کې یې مداخلې هم وکړې. دلته د نېږدې تېرو سیاسي پېښو لنډ بیان لازمي ښکاري.

په کابل کې د کمونیزم د ځپې په خورېدو سره د مقابلې ځپې هم څرګندې شوې او وغوړېدلې. د دغو ځپو لومړنی وړې حلقې د شرعیاتو د پوهنځي استادانو په تېره د اظهر پوهنتون تعلیم یافته ګانو لخوا جوړې شوې؛ خو دا ټول تراوسه بس تبلیغي او تلقیني وو لرې لیدونکې صبغت الله مجددي، د هغه وخت د حبیبي دلېسي د دنیاتو استاد او اوس د افغانستان د ملي نجات د جبهې امیر شاید ترنورو د مخه په منظم ډول مګر انفرادي توګه د کمونیزم په ضد په تبلیغ او تلقین لاس پورې کړی وي لکه چې د ده دیوه تازه چاپ شوي بیوګرافیک اثر (سالارمجاهدین) نه پوره څرګندېږي. کمونیستانو د ده تبلیغات د خپل تحریک د پاره خطر وباله او د هغه په ضد یې په دسیسو پیل وکړ، لکه چې کمونیستان تل همدغسې کوي.

په کال ۱۳۳۸-۱۹۶۰ م کې چې کوم لوړ رتبه شوروي هیئت کابل ته راغلی وو ، د ده (مجددي صاحب) په ضد یې دغسې دسیسه سازه کړه چې ګواکې ده په خپل کور کې له ښارنه د پل ارتن نه. د شوروي مېلمنو د تېریدو په وخت کې د یوه بم دېښودلوتجویز نیوه. د دغې تجویز شوې توطیې خبر،

چې ګواکې د ده د ورور رحمت الله مجددي له خوا پرچمي سلمان لايق ته ورکړشوی، د اميراکبر خيبر او ببرک کارمل له لارې شخص محمد داود خان ته ورسول شو. سردار محمد داودخان چې د مجددي له کورنۍ سره مخالف وو، او هغه عصريت او دخپلو سياستونو مخالفه بلله په دغه پلمه د ده دنيولو امر وکړ او دی د محمد داودخان د صدارت په پاتې ټوله دوره کې د دهمزنګ د زندان په سختو شرايطو کې بندي وساتل شو.

د دغې توطيې د ډېرو مهمو نتايجو په جمله کې يوه دا شوه چې دغه پرچمي لويان محمد داود خان او روسانو دواړو ته تر پخوا زيات اعتبار ور وګرځېدل، او دوی د ديکتاتور محمد داودخان د صدارت په دورې کې د خپلې ډلې د جوړولو د پاره نيمه براعلا کوښښونه وکړل او قوي او منظم شول.

د مشروطه شاهي په لومړی سر کې چې صدراعظم ډاکټرمحمد يوسف غوښتل په افغانستان کې د شوروي او کمونيزم پيداشوي نفوذ د مشروطه شاهۍ په ديموکراسی سره له منځه يوسې د خلق پرچم ډله د لومړي ځل د پاره ميدان ته ووته او د حکومت په ضد يې ترټولو زياتي هلې ځلې وکړي تر څو د عقرب دريم پېښه وشوه او حکومت له منځه ولاړ.

ډاکټر محمد يوسف د يوه ډېر ذکي فعال ديموکرات صداراعظم په توګه د دې استعداد لاره چې د ديموکراسي په اصولو سره د يوه قوي ملي حکومت تاداو کېږدې اونوی راپورته شوي د مسکو په لار روان چپيان بې اثره کړي؛ خو برخلاف د ده او د صدراعظم ميوندوال له لنډې دورې نه وروسته د نا نوښت ګر او نا فعال اعتمادي د صدرات په اوږدې دورې کې چې جريانونو يا ګوندونو ښه وده وکړه او شوروي او چين دواړو خپل ځانله ايډيالوژيکي او ګوندي اثار په دري او پښتو کې په کابل کې د لومړي ځل د پاره په پرېمانه خپاره کړل او په نتيجه کې د نورو ګوندونو تر څنګه د خلق ديموکراتيک ګوند تادواو کېښودل شو.

محمد موسَی شفيق د خپل صدارت په دوره کې چې غوښتل يې افغانستان له ايران، پاکستان، عربي هيوادونو او غرب سره نږدې کړي او د ننې چپي ګوندونو په اجتماعی اصلاحات او د ښې اړخ ګوندونو په مرستې سره وځپي له سياست نه په قانوني توګه ګوښه کړل شوی، خو په دولتي واک مين پخواني صدراعظم محمد داود دچپيانو په ډېرې فعالي همکاری

سره کودتا وکړه او په  هغې سره يې د ملي او قانوني حکومت او ديموکراسي تاداو وران کړ او چپي گوندونه يې له حتمي حلاکت نه وژغورل. يوازي دانه وو، محمد داود خان د مسکو په پله روان چپيانو يعني پرچميانو ته په اردو او حکومت کې ډېر مقامونه ورکړل او پياوړي يې کړل؛ خو څه وخت چې هغه ته هم ثابته شوه چې شوروي په افغانستان کې خپل خاص سياسي مقصدونه تعقيبوي او پرچميان يوازي د شوروي وفادار سړيان دي، فيصله وکړه چې د خپل سلاف موسی شفيق په شان د افغانستان اړيکې له مسلمانو گاونډيو او عربي او غربي هيوادونو سره نږدې او ټينگ کړي، او له شوروي څخه يې لېري وساتي؛ خو په دې وخت کې د خلق ديموکراتيک گوند دومره پياوړی شوی وو چې د خلق، نه پرچم جناح يې د حفيظ الله امين په قومانده د محمد داود پنځه کلن جمهوري رژيم د نظاميانو له لارې له منځه يوړ. له هغه وروسته بې شمېره روسان د «مشاورينو» په نامه په داسې حال کې چې د افغانستان – شوروي سرحد په عمل کې له منځه تللی وو په هيواد کې ننوتل له نوي «دوست» حکومت سره يې د شوروي ډوله ټوټاليټرين دولت په رغونې کې په پراخه پېمانه فعاله برخه د ځان کړه. ورسره د شورويانو مداخلې او د هغو له خوا د خپلو خاصو هدفونو تعقبدل دومره ډېر شول چې حتا حفيظ الله امين ته هم هغه د منلو وړ نه وو. امين په دې فکر عمل کاوه چې د دولت په رغوني او د هيواد په ابادی کې به واک د ده، او مرستې د شوروي وي؛ خو د شوروي بريژينيفي حکومت د پاره دا د زغملونه وو او وروسته له دې چې د نورمحمد ترکي له لارې د امين په نابودولو کې ناکام شو، براعلايې په پوځي بريد سره په ډېري بې رحمی سره امين او د هغه حکومت له مينځه يوړ او په ځای يې خپل ازمويل شوی انټرنيشنليست کمونيست، يعني مسکوته پوره تابع کمونيست ببرک کارمل کښېنوه او دهغه په نامه يې د خپلو مشاورينو له لارې د دولت په رغونې او د حکومت په کولو پيل وکړ چې نتيجه يې اوس هغه ده چې په دغو پاڼو کې بيان شوه . له دغه لنډ بيان نه جوتېږي چې دغه دولت چې د شوروي له خوا منځ ته راغلی په خپله د افغان د اجتماعی او سياسي شرايطو په بنا او د ولس په خوښه او اجماع ندی منځته راغلي. د بېگانه زور ځرگند تحميل دی چې افغانانو ته د منلو وړ ندی اوس پخپله روسان او پرچميان په

خپلې تېروتنې پوه شوي او هڅه کوي چې د دولت ځينې اړخونه واړوي. د جوزا په ګونډي پلينوم کې يې فيصله وکړه چې د اطلافي حکومت د جوړېدو په صورت کې دوی خاضر دي د افغانستان د ديموکراتيک جمهوريت نوم د افغانستان جمهوريت کړي په هر حال له دغسي حکومت سره ان له هماغه پيل نه د افغانانو مخالفت حتمي وو چې نتيجه يې پرلپسي ژوره بې ثباتي او بد امنيتي شوي ده. بله دا چې روسانو لومړی د خلقي جناح په ځپلو او د پرچمي جناح په هسکولو او دا دی اوس د ننه په پرچمي جناح کې د کارمل د ډلګې په ګوښه کولو او د نجيب الله په هسکولو سره يو بل درز هم اچولی چې دغه حال هم په خپل وار تاثير په سياسي بې ثباتی کې وارد کړی دی.

**متضادي اډيالوژيګانې او سياسي بې ثباتي:**

د وطن اوسنی حاده نارامي د مختلفو متضادو فکرونو د ټکر نتيجه ده چې په تېرو دريو لسيزو کې يې خاص اوشديد شکل غوره کړی دی. د همدغې مودې په بهير کې تعليم يافته منځنی طبقي ښه بېخ نيولی وو. د کابل پوهنتون او پولي تخنيک ځوانان او ځوانانې په زيات شمېر په جامعي او دولت کې د ننه شوي او دې سره جوخت د باندنيو هيوادونو نه تعليم يافته افغانان هم په ډېر شمېر ستانه شوي دي چې په هغو کې له سوشيليستي هيوادونو څخه را ستانه شوي افغانان په تېره په نظامي ډګر کې پوره د اهميت وړ دي او دغه شمېر په تېرو نهو کالونو کې په خاص ډول ډېرشوي دی اوس ممکن د دوی مجموعي شمېر په هغو افغانان زياتی وکړي چې له عربي اولويديځو هيوادونو وطن ته ستانه شوي دي. د دغي نوي هسکې شوې تعليم يافته ډلي ستر اهميت په دې کې دی چې دوی د وطن د سياست عنعنوي بڼه پوره اړولي ده. پخوا دسياست د ميدان مخکښان خانداني غړي، نظاميان، قومي لويان، مځکوال او کله کله ورښانيون او د متوسط تعليم يافته قشر نه لږ کسان وو. له هغې ورځې څخه چې عصري ګوندونه په پټه يا برالا جوړ شوي، تعليم يافته پکې په خورا ډېر شمېر ننوتلي دي، عصري ګوندونه په واقع کې همدوی جوړ کړی او د دوی په لاس کې دي. البته دوی له اره نورو طبقوته منسوب دي، خو دوی په خپله د تعليم، عايداتو، ذوق، فکر او سلوک او مسلک په لحاظ له هغو نه بېل او حتا له هغو سره مخالف واقع

شـوي دي. دغـسي مثالونـه پـه دغـو ځوانانـو کـې بېخـي ډېـر لیـدل شـوي چـې دوی بـه اره لـوی یـا متوسـط مځکـوال وي، خـو پـه عمـل او واقعیـت کـې بـه لـه مځکوالـی طبقـي سره سـخت مخالفـت کـوي، یـا بـه دوي پـه اصـل کـې د پانګـه ورو طبقـي تـه منسـوب وي، خـو پـه عمـل کـې بـه لـه هغـي سره مخالفـت د هغـوي سـیاسي ژونـد تشـکیلوي او ځـان بـه لـړ تـر لـړه پـه څرګندونـو کـې د کارګـرو او بزګـرو او پـه مجمـوع کـې د خواریکښـو ګټنـدوی معـرفي کـوي. معکوسـا د دغسـي بزګـرو حتـا کارګـرو اوشـمېر بېخـي ډېـر دي چـې لـه دغـه حکومـت سره مخالفـت او حتـا وسـلوال مخالفـت کـوي، سره لـه دې چـې حکومـت ځـان د هغـوي د ګټـو مدافـع او حتـا د هغـو حکومـت بـولي. دا فکـر چـې د يـوي طبقـي غـړي پـه ارومـرو د هماغـي طبقـي پلویـان وي. دلتـه پـه عمـل کـې ناسـم ثابـت شـوي او واقعیـت دا ده چـې فـرد د خپـل ژونـد پـه بهېـر کـې د څـه ډول ایډیالـوژی خاونـد ګرځـي او حتـا د یـوې کورنـی غـړي دشخصیت فکـر، روابطـو او روزنـې لـه مخـې پـه بېلـو او حتـا متضـادو ایډیالوژیـو ګروحېـږي او کـه دغسـې افـراد د سیاسـت پـه ډګـر کـې ننـوزي، پـه مخالفـو او متضـادو ګوندونـو کـې غـړي شـوي دي. حتـا داسـي کېسـې هـم اوریـدل شـوي چـې د کودتـا نـه وروسـته تـاوی ځوانـو ګوندیانـو پـه خپلـو پلارونـو او مـشر ورونـو هـم چـې دنـوي نظـام مخالـف وو، جاسـوسي کـړي او هغـوی بیـا لـه منځـه وړل شـوي دي.

عنعنـوي پیوسـتون چـې پخـوا د افغـان کورنیـو خاصـه وه اوس پـه ډېـرو کورنیـو، مخصوصـاً پـه عـصري کورنیـو کـې لـه منځـه تللـې او عـصري ایډیالوژیکـې تشـنجات پکـې ننوتـلي دي. پـه بـل عبـارت د جامعـي اصـلي واحـد یعنـي کورنـۍ ښـوریدلې او جامعـه ورسره نـا رامـه شـوي ده. دغـه نارامـي پـه سـیاسي ډګـر کـې مخصوصـاً ډېـره شـدیده شـوې او د هغـو سـتر علـت ده چـې فکرونـو نفـوذ دی چـې پـه تېـرو دېرشـو کالونـو کـې یـې پـه افغـاني ټولنـي کـې کـړی، او پـه دې ډول یـې د جامعـي لـه عنعنـوي ارزښـتونو سره چـې اسـلامي او افغـاني دي، پـه ډېـر تونـد او توپـاني ډول ټکـر کـړی دی چـې دلتـه د ټکـر د سـترو ټکـو سـپړودل ضروري بریښـي.

## ماتریالیزم، د ټکر یو عمده ټکی

د ټکر یو مرکزي ټکی دا دی چې چپي فکرونه او په خاص ډول ماکسیزن لیننزم په ماتریالیزم یا مادي نظر او فلسفي بنا دی. دغه نظر دین د انسان لپاره مخدر او تریاک ګڼي، په داسې حال کې چې د اسلام اساسي بنسټ په یوازیني لوی څښتن یعني الله (ج) باندې اعتقاد لرل او د دیني نورو فرایضو اجرا کول دي چې هغه انسان متکامل او اخلاقي کوي. په دې ډول د کمونیزم او اسلام تر مینځ ایډیالوژیکي تضاد اساسي او بېخکي دی. دا اوږد بحث غواړي؛ دلته یوازې دومره ویل بس ښکاري چې تر کودتا نه وروسته د خلقیانو په واکمنۍ کوښښ کېده، لکه څنګه چې یې یادونه وشوه، اسلام لږ تر لږه په رسمي ډګر کې پټون او بې تاثیره وي، خو دغه کوښښ پوره ناکام شو. له هغه وروسته د پرچمیانو په دوره کې معکوساً په نهایت ننداه ییز ډول د اسلام لپاره توجه وشوه، سره له دې هم څنګه چې اسلام اساساً دین او دولت دی، یعني د دیني مناسکو او الله (ج) باندې د اعتقاد لرلو تر څنګه د اسلامي ټولنې سیاسي اړخ یعني دولت هم باید د اسلامي اصولو له مخې تنظیم شوي وي او څنګه چې کمونیزم هم د دولت تنظیمول د خپلو اصولو په مطابق غواړي، د دوی تر مینځ رښتیني پخلاینه اصلاً ممکنه نه ده او په افغانستان کې به دغه ټکرونه او نارامي ګانې تر هغو وي، تر څو د افغانستان په ټولنه یعني دین او دولت د پخوا په څېر د مسلمانانو په خوښه وي. په افغانستان کې به دغه ټکرونه له دې امله هم ډېر شدید وي چې کمونیزم له خارج نه د پرچمي زور پروني را وارده شوې بېګانه متاع ده او د افغاني ټولنې له هېڅ اړخ سره سر نه لګوي او د آزادۍ په حال کې به خپله خلک هغه ردوي، لکه چې د دغه حقیقت په پېژندلو سره په خپله کمونیستانو هم د خپل قدرت په حال کې، په داسې حال کې چې د شوروي غوندې یو ستر قدرت یې په ټوله معنی تر شا ولاړ دی، د اسلام په مقابل کې په شاتګ شروع کړې ده. په عین حال کې د افغانستان رښتیني مسلمانان او د هغو په نماینده ګۍ د سترو ګوندونو مجاهد مشران د اسلام داسې وارثان دي چې د اسلام په لار کې جهاد هغه هم په داسې وخت کې اسلامي رنسانس په قدرت کې دی او افغانستان د اسلامي جهان د څوارلسو پېړیو یو فعال او مبتکر جز دی، خپله دیني او څنډ نه منونکې غوڅه فریضه بولي.

## انټرنیشنلیزم، د ټکر بل عمده ټکی

د ټکر بل عمده ټکی دا دی چې کمونیزم په انټرنیشنلیزم بنا دی. انټرنیشنلیزم د بین المللي نظر یا فلسفې معنی ورکوي؛ خو له دې ترکیبي کلیمې نه د کمونیستانو مراد دا دی چې دوی د دوی په الفاظو په «علمي کمونیزم» عقیده لري. دوی د خپلې عقیدې له مخې باید د خپل ملک شتمني او قدرت د سوشیلیزم او کارګرو په ګټه ولګوي، توپیر نه کوي چې سوشلیزم او کارګر د دوی په ملک کې وي، یا د دوی له خپل ملک نه د باندې د نړۍ په بل ګوټ کې وي. د دوی په عقیده کارګران ځانله کوم خاص ملک نه لري او د نړۍ کارګران د خپل اجتماعي دریځ له مخې سره طبیعي متحدان دي او ګټې یې د خپل ملک د نورو طبقاتو له ګټو نه غیر او له هغو سره په تضاد کې دي. په بل عبارت کمونیستانو ته د «د ورونو ملکونو» کارګران په تېره د هغوی مخکښان یعنې کمونیستان د خپل ملک تر خپلو نورو خلکو غوره او بهتر دي. دا چې د افغانستان کمونیستانو په زرګونه، بلکې په میلیونونو خپل وطنوالان او له هغې جملې نه په زرګونو رسېدلي فني او عملي کدرونه د «بورژواګانو»، «مرتجعانو» او «نشنلستانو» او «ضد انقلابیونو» په نامه له خپل پلرني مل نه هجرت ته اړ کړل او د عملي، اداري او فني کدرونو مقاومونه یې د « دوست شوروي ورونو» ماهرانو ته ورکړل، د کوم تصادف له مخې نه، بلکې د دوی په فکر د کارګري انټرنیشنلیزم یوه حتمي برخه ده. سربېره پر دې انټرنیشنلیزم د خلق دیموکراتیک ګوندلویانو لپاره په عمل کې دا شوې چې دوی د خپل ګوند له تاسیس نه د «ورور» شوروي حکومت او ګوند په دستور فعالیت وکړي او د خپل واکمن کېدو، مخصوصاً د پرچمیانو په هسکېدو سره د خپل ملک سرحدات د هغوی په مخ په عمل کې خلاص پرېږدي او «مشاورانو» ته یې د دولت په رغونې کې واک ورکړي او خپل دولت د شوروي ماډل یا سرمشق له مخې تنظیم کړي او ملي اقتصاد په شوروي اقتصاد پورې وتړي او په یوه جمله په وطن کې د واقعاً بې حسابه قراردادونو له مخې په شوروي او نورو سوشلستي هېوادونو پورې مربوط کړي او دا مجاز وبولي چې سرحدي ولایتونه له ګاونډیو شوروي جمهوریتونو سره یې د مرکز له لارې نېغ په نېغه هر اړخیز روابط ټینګ کړي چې دا ټول د کارګري انټرنیشنلیزم له مخې کېږي. دوی دا هم په انټرنیشنلیستي کمک

کې حسابوي چې تر یو لکو نه زیات شوروي عسکر دننه په وطن کې په جنګي عملیاتو کې افغانان وژني او د لزوم په وخت کې نظامي الوتکې له دننه شوروي هډو نه الوزي او په افغانستان کې عملیات کوي. په افغانستان کې ټول جنګي عملیات د شوروي مشاورینو په خوښه او فکر کېږي، دوی دعملیاتو نقشه، وخت او ځای په خپله ټاکي او حکومتي لوری بس ور سوقوي.

په هغه ملک کې چې حقایق دغسې وي، لکه څنګه چې په افغانستان کې بې له کوم شک نه همدغسې دي، د «افغانستان آزاده و مستقل و سربلند» او غیر «منسلک» او «دارای حاکمیت ملي» ناره چې پرچمي مشرانو سر کړي، د ناولو او ورانو خولو هسې خوشې تشې نارې سورې دي. په هغسې ملک لکه افغانستان کې چې کارګران د نفوسو یوه ډېره بېخي وړه او د عملي ژوندانه په ډګر کې واقعاً نا مؤثره برخه تشکیلوي، کارګري انټرنیشنلیزم به څه مفهوم ولرلی شي؟ او که دغسې انټرنیشنلیزم حقیقي کېدلی هم وشي، لکه څنګه چې پرچمي ګوندیان پرې په کلکه معتقد دي؛ نو دوی ولې تر اوسه په سلګونوکرته ویلي وي چې افغانستان په «فیوډالي» او «ماقبل فیوډالي» یعنې د دوی په اصطلاح د «لومړني کمیون» په مرحلې کې واقع دی؟ د افغانستان له اجتماعي، اقتصادي حالاتو او هم له هغه څرګند عکس العمل نه چې په میلیونو ژوندیو، فعالو او حساسو افغانانو د غوایي له کودتا نه را په دې خوا په خپله خوښه او په عمدي ډول د کابل د حکومت د سوشلستي ډوله پروګرامونو په مقابل کې د عمل او ژوند په میدان کې ښودلی، پوره څرګنده ده چې «فیوډالیزم» او «انټرنیشنلیزم» مفهومونه د سرو لښکرو په شان له باندې نه را وارد شوي او نامربوط مفاهیم دي؛ خو د دغو ټکو په باب نور بحث دا لیکنه له اصلي موضوع نه لرې کوي. له دې امله بحث د ټکر یو بل ستر ټکي ته اړول کېږي.

## یو ګوندي طرز، د ټکر بل ټکی

د ټکر بل عمده ټکی د حکومت د یوه ګوندي سیستم د شکل زېږنده دی. د غوایي تر کودتا وروسته نورمحمد تره کي څرګنده کړه چې مونږ انقلاب کړی او مونږ په خپله حکومت کوو. د ګوند لویانو په دې ډول په

دغې غلطې ګڼنې عمل وکړ چې ګواکې خلکو دوی ته قیومیت او د هر څه واک وکړی دی. په دې ډول په یو ځل نور ګوندونه او حتی ولسي او وړ افراد او کدرونه چې په دولتي کارونو کې یې تجربې لرلې او د هغو لپاره له حکومت نه د باندې مناسب شلغونه نه وو، له حکومت کولو نه محروم کړل شول. په دې حساب په لوېدیځ کې یو شمېر تعلیم یافته لوړ رتبه ماموران او متخصصان له مرکز نه ولایاتو ته په ښکته رتبو تبدیل شول او رسمي ګوند چې دومره لوی ګوند نه و، په دې پیل وکړ چې هم حکومتي لوړ سیاسي مقاومونه او هم د ملکي سرویس لوړ ماموریتونه چې معمولاً له بې طرفو او فني کدرونو څخه جوړ او دایمي وي، له خپلو غړیو نه ډک کړي. یوازې د چپي وړو تنظیمونو لکه د ساما مشر مجید کلکاني، او د «ستم ملي» مشر طاهر بدخشي او د دوی ځینو وړو ملګرو ته غیر سیاسي نامهم پوستونه ورکړل شول، خو دوی هم زر یا وځپل شول، یا یې په خپله فرار وکړ او یا پټ شول. له نورو ګوندونو سره په حکومت کولو کې نه یوازې ائتلاف رد شو، بلکې د هغو په ځپلو پیل وشو؛ سره له دې چې ګوندیانو د حکومت په کولو کې تجربه نه لرله او په دې پسې هم نه وو، چې جامعه واړوي او یو نوی دولت په کې له سره پیل او روغ کړي او په دې ډول وړو کسانو او متخصصانو ته یې اړه لرله. پروني محرومان سم له لاسه د دولتي په خپل سر واک په خمار مست شول او د ګوند زورور اړخ یعنې خلقي اړخ پرچمیان تر فشار لاندې ونیول، سره له دې چې د کودتا په سر کې حکومتي مقاومونه د دواړو تر مینځ برابر ویشل شوي وو او تر هغه د مخه د دواړو سره اتحاد کړی و.

پر چمي لویان په بېرونیو افغاني پوستونو باندې وګومارل شول، یعنې د عملي سیاست له میدان څخه و ایستل شول او ډېر نور غړي یې د ننه په وطن کې بندیان او لاندې شول او د ګوند خلقي جناح حکومتي واک یوازې د ځان کړ. ډېره موده نه وه تېره شوې چې په خپله په خلقي جناح کې هم درز راغی او د ګوند مؤسس نورمحمد تره کی چې د «شرق نابغه» بلل کېده، له مینځه یوړل شو او د هغه په له مینځه وړلو سره د هغه ټله ډله هم وځپل شوه. له هغه وروسته یوازې د ګوند امیني جناح چې زیاتره یې له پښتنو نه جوړه وه، د نیشنلستانو کمونیستانو په حیث د شوروي مشاورانو او متخصصانو په مرسته د ټول ملک نظامي او ملکي چارې ځان ته انحصار

کړي. دا ټول او ډېر نور په شلو میاشتو کې وشول، چې بریژنیفي حکومت د سیاسي بې ثباتۍ په دغه جدي بحران کې فیصله وکړه چې په خپله ګوند د انټرنیشنلیستي جناح یعنې د پرچم له لارې په افغانستان کې حاکمیت وکړي. په برالا نظامي یرغل سره یې د ګوند امیني حاکمه ډله د حکومت له مقام نه نسکوره کړه او پر ځای یې پرچمي ډله حاکمه کړه. پرچمیانو په ظاهر کې د ځپل شویو تره کي خېلو او وروسته د ستمیانو او د یو شو غیر مهمو غیر ګوندي پخوانیو بیوروکراتانو په همکارۍ، خو په واقع کې د خاد له لارې د شوروي مشاورینو په دستور په حکومت کولو پیل وکړ او د سیاسي اصولو په نامه یې موقتي اساي قانون ویوست، خو په عمل کې یې د هغه ټول هغه مواد چې د حکومت په برابر کې د افرادو په ګټه وو، تر پښو لاندې کړل. پرچمي حکومت د شوروي غوندي ستر قدرت ته په نېغې اتکا سره د مخالفو ګوندونو بقایاوې، په تېره ورې ماوستي ډلې، لا هم وځپلې او له دولت څخه یې د «نامطلوبو» عناصرو تصفیه چې خلقیانو پخوا شروع کړې وه، او په هغو کې د دموکراسي او ملي فکرونو غیر ګوندي اشخاص شامل وو، ښه عمومي کړه او د کمال خد ته یې ورسوله. خو په شوروي کې د ګرباچف په هسکېدو سره د کابل پرچمي حکومت د ۱۳۶۴ کال په سر کې د پخلاینې په نامه ننداره یې جرګې جوړې کړې او په حکومت کې یې یو شمېر غیر ګوندي پخواني بیوروکراتان شامل کړل او حتی له مخالفو ګوندونو سره یې د نه منل کېدلوائتلاف نارې هم سر کړې. بل کال د نجیب الله په واکمن کېدو سره د ملي پخلاینې او ائتلاف پروګرام د ګوند او حکومت رسمي سیاست وګرځېد. په حکومت او په تېره په انقلابي شورا کې پخوانیو ډېرو بیوروکراتانو ته مقامونه ورکړل شول. د دولت د بیا جوړونې تر نامه لاندې رسمي ګوند د جوزا د میاشتې په پلینوم کې حتی ومنله چې د ائتلاف په صورت کې به د افغانستان دیموکراتیک جمهوریت ته د «دیموکراتیک» کلیمه حذف شي او هم به خو ګوندي سېستم مینځ ته راشي.

په عین حال کې وعده ورکړل شوه چې ټاکل شوی کمیسیون به ژر د اساسي قانون طرحه د نظر غوښتلو لپاره وړاندې کړي. د دولت او حکومتي سیستم په باب دغه کار لا روان دی. له دغه لنډ سکېچ او د هېواد د سیاسي حال نه څرګنده ده چې یو ګوندي سیستم رسمي ګوند له مخالفو ګوندونو

او پـه واقـع کـې لـه ټـول ولـس سره پـه متضـاد قطـب کـې اچولـی چـې د هغـه نتیجـه جنـګ او پرلپسـې نارامـې شـوې او بلـه دا چـې پـه خپلـه رسـمي ګونـد یـې هـم ټوټـه ټوټـه کـړی او د هغـه تـر مینـځ یـې ژور تشـنج دایمـي کـړی دی. دا ټـول ثابتـوي چـې پـه افغانانـو بانـدې د یـوه ګونـدي سیسـتم تحمیلـول یـو غیـر طبیعـي او حتـی ناشـونی کار دی.

## ټوټالیټیریزم، د ټکر بل عمده ټکی

د ټکـر بـل لـوی ټکـی د دولـت د ټوټالیټـریـن سیسـتم زېږنـده دی. لـه ټوټالیټـریـن سیسـتم نـه مـراد هغـه سیسـتم دی چـې پـه هغـه سره کوښـښ کېـږي حکومـت کل اختیـار او حـاوی او عالمـي وي، یعنـې د ژوندانـه ټولـې چـارې اقتصـادي، اجتماعـي، سـیاسي، کلتـوري پـه خپلـه اجـرا کـړي او د هغـه لپـاره افـراد اسـتخدام کـړي. دا لـه یـو ګونـدي طـرزه څخـه نـه بېلېدونکـی او پـه واقـع کـې د هغـه متمـم او مکمـل دی. کمونیسـتان او فاشسـتان دواړه پـه یـو ګونـدي او ټوټالیټـریـن سیسـتم ټینـګار کـوي او د کمونیسـتانو پـه فکـر کـې د اقتصـاد سوشلسـتي کـول، یعنـې دولتـي کـول او پـه دقیـق ډول د یـوازې رسـمي ګونتـد تـر کنټـرول او واک لانـدې راوسـتل یـو نـه اوړېدونکـی بنیـادي اصـل دی، څرکنـده ده چـې د دغـه اصـل عمـلي کېـدل دولـت لـه حـد نـه ډېـر پیـاوړې کـول او د سیاسي قـدرت متمرکـز کـول ایجابـوي چـې پـه هغـه بیـا پـه جامعـه کـې نارامـي او تشـنج حتمـي او شـدید کـوي، مخصوصاً پـه هغـه صـورت لکـه پـه افغانسـتان کـې چـې هغـه پـه وچ زور او د عمومـو پـه مخالفـت سره عمـلي کېـږي. پـه افغانسـتان کـې د غوایـي تـر کودتـا نـه رومبـی هـم دولـت پیـاوړی و او ډېـرې دولتـي تصـدي ګانـې یـې لرلـې. خـو لـه کودتـا څخـه وروروسـته کوښـښ وشـو چـې د یـو راز دولتـي کاپیټلیـزم یـا سوشـلیزم اصـول عمـلي شي، یـا لـږ تـر لـږه دولـت پـه انقـلابي ډول پیـاوړی شي. لـه دې املـه د حکومـت لویانـو لـه کودتـا نـه وروسـته برخـلاف د دې چـې د کودتـا پـه دوهمـه ورځ یـې شـخصي او خصـوصي ملکیـت پـه خپلـو شـعارونو کـې مصئـون بللـی و، نـارې سر کـړې چـې افغانسـتان پـه یـو ځـل د تاریـخ دوه پړاوونـه ووهـل او ځمکـه د هغـه چـا ده چـې کار پـرې کـوي. حکومـت یـو څـو خصـوصي مطبعـې چـې پـه وطـن کـې چالانـې وې، سـم لـه لاسـه دولي وګرځولـې، بانکـود او صناعتـي موسسـې خـو لا دمخـه یـا پـوره یـا نیمـه دولتـي شـوې وې.

یـوازې وارداتي او صـادراتي شرکتونـه یـا خصـوصي یـا مختلـط یعنــي خصــوصي او حکومتــي وو. پـه صناعـت کــې افغانسـتان د دولتـي کاپټلیـزم پـه حسـاب کـې راتـه. د حکومـت لویانـو د دغـه فکـر لـه مخـې چـې د مـال او شـتمنۍ خاونـدان د دې پوتانسـیل یـا بالقـوه اسـتعداد لـري چـې یـوه ورځ بـه د حکومـت پـه ضـد اقدامـات وکـړي، عمـل وکـړ؛ نـو یـوه وړه پلمـه بـس وه چـې د یـوه شـخص شـتمني د دولـت پـه نامـه مصـادره شي، خـو پـه واقـع کـې هغـه د ګوندیانـو د اسـتفادې شي. پـه ښـارونو او ولایتونـو او پـه ټـول ملـک کـې شـتمن کسـان پـه یـوه او بلـه نامـه د «بسـپنې» پـه ورکولـو مجبـور کـړل شـول. یـوازې پـه کابـل کـې ممکـن پـه سـل ګونـو پخوانیـو شـتمنو لـوړ رتبـه بیوروکراتانـو، خانـداني غـړو او نـورو خپلـې ماڼۍ او د هغـو لوکس محتویـات پرېښـودل او پـه خپلـه وتښـتېدل. د ځـان او مـال مصئونیـت لـه مینځـه لاړ، ډېـرو نـورو خپلـې شـتمنۍ پـه ارزانـه بیـه خرڅـې کـړې او پـه خپلـه وتښـتېدل. حکومـت زر پـڼـد او پیـاوړی شـو.

خـو پـه زراعتـي افغانسـتان کـې ځمکـه او د هغـې مالکیـت تـر هرڅـه مهـم شـمېرل کېـده. ممکنـه نـه وه چـې حکومـت هغـه هـم لـه لاسـه دولتـي کـړي. د جامعــې د پېړیــو پېړنیــو دود، د ځمکــو څنګــه والــی او موقعیــت او اســلام د دې کار اغېزمــن خنډونـه نـه وو، نـو د ځمکـو د دیموکراتیکـو اصلاحاتـو پـه نامـه اقـدام وشـو.

د دغـه پروګـرام مرکـزي ټکـی لـه ځمکـه والـو نـه پـه وچ زور د اضـافي ځمکـې اخېسـتل او بزګـرو تـه یـې پـه وړیـا ډول ورکـول وو، بـې لـه دې چـې د ورکـړل شـویو ځمکـو بیـه تادیـه شي. دغـه فیصلـه اساساً د شـوروي پـه مـاډل وشـوه. هلتـه لکـه څنګـه چـې حکومـت پنځـوس کالـه دمخـه د لویـو ځمکـه والـو یـا کولاکانـو پـه مقابـل کـې بـې ځمکـې یـا لـږ ځمکـي بزګـر پاڅـولي او پـه وروسـتیو سره یـې کـولاکان ځپـلي او لـه هغـوی نـه یـې پـه لکونـو وژلي وو. پـه افغانسـتان کـې هـم د حکومـت لپـاره د ځمکـو د اصلاحاتـو اسـاسي منظـور دا شـو چـې پـه هغـو سره بـې ځمکـې او لـږ ځمکـي بزګـران خبـل کـړي او د ځمکـه والـو مقابـل یـې وګرځـوي. پـه بـل عبـارت د ځمکـې پروګـرام پـه اصـل کـې سیاسي و، نـه اصلاحـي؛ نـو ځکـه حکومـت پـه دغـه کار کـې د نـاکام شـو، سره لـه دې چـې هـرې بزګـرې کورنـۍ تـه یـې د شـپږ جریبـه ځمکـه د «ځمکـې د ویـش سـند» پـه نامـه، نـه ځمکـې د مالکیـت د شرعـي قبالـې لـه مخـې ورکـړه. پـه دې حسـاب ځمکـه د بزګـر قطعـي

مالکیت نه شوه، څنګه چې دغسې بزګران باید د بزګرو په شورا کې تنظیم وای، معلومه وه چې حکومت له دغې لارې او هغو ته د کریدتونو، ماشین الاتو، تخم او کیمیاوي کود د ورکولو له لارې د شوروي اتحاد په څېر په مناسب وخت کې د ځمکو کوپراتیفي کول یعنې په ځمکو او بزګرو باندې د خپلې قبضې خپرول یعنې دولتي سوشیلیزم غوښته.

په عین حال کې د دولتي فارمونو په زیاتولو باندې هم پیل وشو چې هغه د شوروي سوخوز ته ورته وو. د دغو سکیمونو په پراخېدو او بریالي کېدو سره بیا نو په افغانستان کې د عنعنوي ازاد بزګر او ځمکه وال رول ختم وو چې د اجتماعي، اقتصادي جوړښت خاصه وه او د باندنیو یرغلګرو په مقابل کې د مقاومت ټینګ سپر ګڼل کېدل.

په هر حال د خلقي حکومت د ځمکو د اصلاحاتو پروګرام ناکام شو، پرچمي حکومت له خپل هسکېدو وروسته کوښښ وکړ د ځمکو د اصلاحاتو د نیمګړتیاوو چاره وکړي. اول یې یو لړ ورېږ سمونې وکړې، بیا یې د مالکیت نهایي حد له دېرشو جریبو ځمکې څخه سلو جریبو اعلی ځمکې ته ورساوه او څرګنده یې کړه چې مالکان د شرعي قانون له مخې وارثینو ته د ځمکې د انتقال حق لري. سربېره پر دې په دې تازه وختونو کې یې اعلان کړی چې د مهاجرینو د ستنېدو په صور کې به د هغوی ضبط شوي ملکیتونه بېرته ورکړل شي. دغسې ملکیتونه بېخي ډېر دي، چې د غوايي تر کودتا نه وروسته د هغوی د مالکانو په هجرت کولو سره ضبط شوي دي. د حکومت یو بل نوی اقدام دا دی چې په وطن کې یې د ملکیتونو خرڅول چې پخوا یې تر دې ناممکن ګرځولي وو، اوس یو څه اسان کړي دي او په عین حال کې، لکه چې دمخه یې یادونه وشوه، د دوی په اصطلاح پرونیو بورژواګانو او ننیو وطن پالو ملي تاجرانو لپاره یې یوه اندازه اسانتیاوې هم برابرې کړې دي. په دې ډول د حکومت لومړنی ټوټالیټیرین شکل تر ډېره حده مختصر او بدل شوی. یقین دی چې دغه بدلون اساساً د جنګ د فشار له امله د شوروي په هدایت شوی دی. هلته د جامعې د دیموکراتیزي کولو په لړ کې دولتي تصدي ګانو ته د پخوا په خلاف د آزاد تصمیم نیول، یعنې له مرکز نه د آزادېدو ډېر واک ورکړل شوی دی. سره له دې دا به سادګي وي چې فکر وشي د کابل حکومت د افرادو په مقابل کې په اساسي ډول تغییر

مونډلی دی. خاد په خپل قوت او پراختیا سره په هر ځای کې شته، ځارو او فعال دی. خو اوس تر نیولو نه زیات اوري او په اصطلاح ټول غوږ شوی دی. همدا اوس یې په لسګونو زره انسانان په زندانونو کې ساتلي او سختې او غیر انساني جزاوې ورکوي، سره له دې چې یونو فیصله کړې چې هېڅ حکومت نه د جنګ او نه د سولې په حال کې د دې حق لري چې افراد شکنجه کړي. خاد حتی تورنو ته د دې مجال نه ورکوي چې قانوني دفاع وکړي. یوازې رسمي ګوند په ټولو رسمي او غیر رسمي ادارو او د هستوګنو په سیمو کې د لومړنیو سازمانونو په لرلو سره خپلې وسپنیزې پنجې خښې کړي؛ سره له دې چې ګوندیان یې اوس له اولني غرور ځخه لوېدلي دي او تر پخوا نه لږ د خاد لپاره د جاسوسي وظیفه ترسره کوي. ډله ییز مفاهماتي وسایل د حکومت په انحصار کې او د هغه تر مستقیم کنترول لاندې دي او دغه وسایل د پخوا په شان همدغسې یو اړخیزه، پروپاګندي او د رسمي واک په خدمت کې دي. په دې مینځ کې د افرادو لپاره په خصوصي مجلسونو او لیدنو کتنو کې انتقادي غږ پیدا پاتې دی. اوس هم د دغه جاري جنګ په باب چې د میلیونونو انسانانو لپاهر د مرګ او ژوند سوال دی، د نظر د ځرګندونې مجال نشته. اوس هم زمونږ د میلیونونو انسانانو دغه طبیعي حق یوه واړه ګوند او په ګوند کې یو ځو پاسنیو غړیو او په دقیق ډول په مسکو کې د پولټبوریو یو ځو غړو د ځان کړی دی. برالا انتقادي او ازاده غږېده اوس هم «تخریب» ګڼل کېږي او عاملین یې بې جزا نه پاتې دي کېږي. د پرچمي حکومت په اساسي اصولو کې د افرادو ذکر شوي حقوق ټول بې زوره بې اثره دي، نو ځکه بې مفهومه او مړه دي.

## د مقاومت غورځنګ او سیاسي بې ثباتي

اوس چې بحث اصلي ټکي ته متوجه شي، وبه ویل شي چې د هېواد د سیاسي بې ثباتۍ عامل د مقاومت هغه غورځنګ دی چې لومړی د داخلي استبداد او بیا د باندني یرغل ګرو په مقابل کې ښودل شوی دی. د بحث موضوع مهمه ده او اوږد بیان غواړي. دلته یې یواړې یو لنډ سکېچ وړاندې کېږي.

د اسلامي عدالت د تحقق او له کمونیزم سره د مقابلې په غرض په

پاچایي لنډې دیموکراسۍ کې یو شو اسلامي تنظیمونه مینځ ته راغلل چې هغه وخت د «اخوانیانو» یا ورونو په نامه یادېدل او لویان یې د اسلامي نړۍ د ستر مرکز مصر د اوخوان المسلمین دلومړنیو مفکرینو او موسسینو لکه حسن البنا او د پاکستان دعلامه مولانا مودودي له افکارو نه متاثر وو. دغې ډلې په لومړي جمهوریت کې څه وخت چې کمونیستان دلومړي ځل لپاره په حکومت کې ننوتل او حکومت د مسکو په لور په چپه خوا کوږ شو، ډېرې فعالې شوې او په لغمان او بدخشان کې یې په ۱۹۵۷ کې په ناکام پاڅون پیل وکړ. د ثور د کودتا په نتیجه کې چې حکومت د کمونیستانو لاس ته ورغی، دغو اسلامي ګوندونو هم یو لړ ستر عمومي قیامونه وهڅول، خو هغه ټول په بې رحمۍ سره وځپل شول. په همدې دورې کې دوی په ولس کې په پوره ډول خپلې ریښې وغځولې او ځینې لرې اطرافي سیمې یې تر خپلې سلطې لاندې راوستلې. د روسانو د نظامي یرغل او د هغوی له خوا د پرچمیانو په هسکولو سره څه وخت چې د ملي مقاومت غورځنګ یو نوی بعد پیدا کړ، د مقاومت تنظیمونه هم په شمېر کې زیات شول او هم یې جغرافیوي ساحه او هم ایډیالوژیکي ساحه ښه پراخه شوه. له رسمي ګوند او ستمي ډلو نه پرته نور ټول تنظیمونه ملي، اسلامي، قومي او داسې نور تر دغه نامه لاندې راځي؛ خو هر تنظیم ځانله او بېل دی او تر ټولو ستر او ډېرمؤثر یې چې د مقاومت د ملاتړ اصلي تیر جوړوي، هغه دي چې دا اوس د اووه ګوني اتحاد په نامه یادېږي او د مخه یې یادونه وشوه.

## د مقاومت د غورځنګ په باب د جهان لومړنۍ بې تفاوتي

د مقاومت ګوندونه د شوروي د تېري په وخت کې چې خپل فوځ یې افغانستان ته د جهان له نورو قدرتونو سره د مقابلې په غرض استولی و، نا آماده وو. دوی نه وسله لرله، نه ښه تنظیم او نه د شوروي په مقابل کې د کوم ستر هېواد ملاتړ. په دغه وخت کې لا ډېر تنظیمونه میدان ته نه وو راغلي او د انجینیر ګلبدین حکمتیار په مشرۍ د افغانستان اسلامي حزب او د استاد برهاندالدین رباني په مشرۍ د افغانستان اسلامي جمعیت د میدان او جبهې د یادونې وړ یرغلیز او ګذاریز ګوندونه وو. د سیمې سیاسي ثبات هم په لړزه کې و. په پاکستان کې د پیپلزپارټۍ نه جوړ د ذوالفقارعلي بوټو

حکومت تازه د جنرال محمدضیاالحق له خوا نسکور شوی و او نوی حکومت لا په ځای نه و ټینګ شوی؛ په ایران کې د رضا شاه پهلوي پر ضد د آیت الله خمیني پلویانو دغه ملک په پرله پسې اله ګولو سره په یو ژور سیاسي بحران کې غوټه کړی و. لویدیځ هېوادونه دامریکا په شمول له ویتنام نه د وتلو په وروستی فضا کې چې د شوروي د نظامي قدرت په مقابل کې یې خپل نظامي پروګرامونه نه لرل، دي ته تیار نه وو چې د افغانستان په سر د شوروي یرغل په مقابل کې ټینګ دریځ غوره کړي؛ لکه چې امریکې په ۱۹۶۱ کې د کیوبا او تر هغه دمخه په ۱۹۵۰ کې د کوریا په سر غوره کړی و. څنګه چې شوروي د افغانستان چم ګاونډی و او څنګه چې د هغو کریدیتونو له امله چې شوروي افغانستان ته ورکړي وو؛ د لویدیځ په حکومتي، نظامي او دیپلوماتیکي حلقو کې دغه فکر ښه ښېخ نیولی و چې افغانستان د شوروي په نفوذي ساحه کې پروت یو هېواد دی او اوس چې سرې لښکرې هلته استول شوي، د افغانانو مقاومت به بس په یو څو میاشتو کې ښخي له مینځه یوړل شي او غوخ بری به په چټکۍ سره ترلاسه شي او له افغانستان نه به ژر د شوروي لاس لاندې ختیځي اروپا غوندې یو هېواد جوړوي او لکه چې پښتانه وایي: «نن دی که سبا دی توکل له ښېوي تللی دی.»

جمي کارتر د امریکې د وخت جمهور رئیس شاید تر هر بل واکمن نه زیات دغه فکر په هغې اعتراضیې مې څرګند کړی وي چې ده په افغانستان باندې د شوروي له یرغل وروسته په هغه هېواد وکړه. ده وروسته له دې چې دغه یرغل یې په کلکو الفاظو وغانده، څرګنده کړه چې «که د پاکستان امنیت په خطر کې شي، امریکا به مداخله وکړي او د لزوم په صورت کې به نظامي مداخله وکړي.» د اعتراضیې ضمني معنی دا وه چې امریکا له شوروي سره د افغانستان په سر مقابله نه کوي، خو د پاکستان په سر یې کوي او افغانان پوه شه او شورویان.

د لویدیځ په دغې بې تفاوتۍ کې سره لږ تر لږ په افغانستان کې دغه فکر یو ځل بیا پیدا شو چې امریکا لکه څنګه چې د محمد داود خان د صدرات په لومړیو کلونو کې حتی د پیسو په مقابل کې هم افغانستان ته وسله ور نه کړه او په ډاګ یې پرېښود. دغه ملک یې مجبور کړ له شوروي څخه وسله په بیه واخلي. د دغسې فکر لپاره دلایل هم کم نه وو. ویل کېده

چې لویدیځه نړۍ او په خاص ډول امریکا له افغان او افغانستان سره اصلاً د دفاع وړ علایق نه لري. لویدیځ ملکونه په افغانستان کې پانګې نه لري چې اوس به هغه په خطر کې وي. په همدې ډول په دغه ملک کې نه عیسوي اوسیدونکي او نه د دوی د ملیتونو اقلیتونه ژوند کوي چې دوی د هغوی په غم کې وي. افغانستان د لږ نفوس او کم سویه ژوند په لرلو سره د دغو ملکونو لپاره د اهمیت وړ تجارتي مارکېټ هم نه دی. دا هم ویل کېده چې په دغه ملک کې غرب ته ورته آزادي او دموکراسي هم هېڅکله نه وه چې اوس یې دفاع وشي، او په هر حال غرب د امریکې په شمول اوس نو تجارتي ملکونه دي او هغه پخوانی ایډیال نه لري چې د آزادي او سلف ډیټرمینیشن د حق په سر له نورو ملکونو سره نظامي مقابله وکړي. په دې ټولو سربېره دا هم ویل کېده چې دغه ملک افغانستان د هستوي او ستراتیژیکي سلو په دوره کې اوس خپل عنعنوي اهمیت له لاسه ورکړي او وګړي یې نه شي کولی له کمونیزم سره چې شاته یې د شوروي غونډې یو ستر نظامي قدرت ولاړ دی، اصلاً مقابله وکړي. د دغو دلایلو له مخې ویل کېده چې لویدیځې نړۍ افغانستان بایللی او د شوروي تر نفوذ لاندې ملک یې ګڼلی دی. په ساده عبارت افغانستان د دغه فکر له مخې د لویدیځ لپاره په کمک نه ارزي او نه ورسره په موثر ډول کمک کولی شي.

### د شوروي محاسبه د خپل یرغل په باب

بریژنیفي شوروي هم د سیمې د انکشافاتو په پام کې نیولو سره ځانله بیل حساب سنجولی و. حساب دا و چې افغانان له خلقي حکومت سره سخت مخالف شوي دي، (البته په دې کې هېڅ شک نه و) او که د شوروي حکومت په خپلې نظامي قوې سره دوی د دغه په خپل سري حکومت له استبداد نه وژغوري، دوی به احسانمن شي او دوی به د هغه د لاس لاندې پرچمي حکومت د ببرک کارمل په مشرۍ ومني. ویل کېږي چې کارمل هم خپلو بادارانو ته ډاډ ورکړی و چې نه یواځې ګوندیان، بلکې د افغانستان روښان فکران او سیاسي شخصیتونه په ده غونډېږي او دی به د هغوی په همکارۍ سره د یو ایتلافي حکومت سره په ټول هېواد کې امنیت په یو څو میاشتو کې ټینګ کړي او بیا به سرې لښکرې له مرکزونو او د افغانانو له نظر نه چېرې

لـرې، پرتــې او ځــای پـر ځــای شي.
همدغـه سـبب و چـې د خلقـي حکومـت لـه نسـکورولو نـه وروسـته میاشـتو کـې د حـوت تـر دریـم پاځـون پـورې روسي فـوځ پـه داخـل کـې عملیـات و نـه کـړل او هیلـه مـن و چـې افغانـان بـه د دوی پـه ضـد پورتـه نـه شي. دا هـم سـنجول شـوي وو چـې څنګـه چـې افغانـان غریبـان او پـه شـمېر کـې لـږ دي، دوی تـه بـه د شـوروي لـه خـوا وړیـا خوراکـي مـواد او پوښـاک ورکـړل شي او پـه دغسـې پرېمانـه خیراتونـو او هـم شـوروي تـه پـه سـفر اسـتولو بـه دوی تـر تاثیـر لانـدې لاړ شي او دغـه وړیـا مرسـتې بـه غیـر لـه هغـو کرېدتونـو څخـه وي چـې شـوروي بـه تـر پخـوا پـه کراتـو ډېـر ډېـر مقـدرا نظامـي، تخنیکـي او اقتصـادي مرسـتو پـه بڼـه ورکـوي.

د شـوروي او پرچمـي مشرانـو د حسـاب بـل غـټ، مګـر بیـا هـم ناسـم ټکـی دا و، چـې څنګـه چـې د افغانسـتان پخوانـۍ حکمرانـه ډلـه لـه مینځـه تللـې او د بیـا واکمـن کیدلـو امکان یـې شـته او د سیاسي خـلا پـه دغـه حـال کـې اخوانـۍ ډلـې یـو څـو او هغـه هـم پـه خپلـو کـې سره ورانـې، او لـه ملـک نـه بیـرون مهاجـرې او پـه باندنیـو متکـي دي، د ببـرک کارمـل پـه مـشرۍ سره د خلـق دیموکراتیـک لـه ګونـد نـه غیـر بلـه داسـې ډلـه، ګونـد او اشـخاص نشـته چـې دغـه سیاسي خـلا ډکـه کـړي او ځـان حاکـم وګرځـوي او افغانـان بلـه چـاره نـه لـري، مګـر دا چـې دغـه حکومـت تـه چې«سـتر شـمالي ګاونډی»یـې تـر شـاه ټینـګ ولاړ دی، زر یـا وروسـته غـاړه کیـږدي. پرچمـي لویـان ډاډه وو چـې بریژنیـف د دوکتوریـن لـه مخـې یـو ځـل چـې شـوروي قـواوې کـوم سوشلسـتي هیـواد تـه واسـتولی شي، لـه هغـه ملـک نـه بیـا نـه وځـي. پـه دې ډول دوی پـه دغـه فکـر مسـت وو چـې د افغانسـتان د خلـق دیموکراتیـک ګونـد بـه د « لـوی شـوروي ورور» تـر سـیوري لانـدې د تـل لپـاره د ملـک حاکـم ګونـد وي. د همدغـه فکرلـه مخـې وروسـته ځینـو نـارې سر کـړې چـې داسـې قـدرت پـه نـړۍ کـې نشـته چـې شـوروي لـه افغانسـتان نـه پـه زور وبـاسي؛ نـو ځکـه دوی افغـان ولـس «مرحـوم ولـس» وبالـه او د فاتحـې ورکولـو لپـاره یـې یـو وخـت بـل وخـت کابـل تـه روان وو.

## د ملي مقاومت منطق او اشکال

خو په خپله د خوارو په شمېر کې لږو، بېرته پاتو او د لویو هېوادونو له خوا چارپېر شویو مګر په آزادۍ مینو افغانانو د خپل هېواد او روسي یرغل په باب بل راز منطق لاره. د دوی له نیمچه تعلیم یافته، نیمچه عصري او له ولس نه بې ښو شویو ښاري برخو له یوې وړې برخې نه پرته ستر اکثریت، له دې امله چې په خپل د پېړیو پېړیو سنتي آزاد ژوند، په خپلو قومي، ملي او دیني ارزښتونو؛ په خپلو ځانګړو سیمو او په خپل وطن او آزادۍ او خپلواکۍ ان د قربانۍ تر ورکولو پورې مین وو، و نه غوښتل چې هغه له روسانو او پرچمیانو سره د عصریت او ترقۍ په نامه سودا کړي، نو ځکه دوی د حوت په درېیمه په عمومي او بې ساري پاځون سره د روسانو یرغل او پرچمي حکومت په ډېره ټینګه اراده رد کړ او شکاکو نړېوالو ته یې وښودله چې که غر لوړ دی په سر یې لار شته.

د کابل خلکو په دغه بې ساري پاځون سره چې په هغه سره په واقع کې د ټولو افغانانو اراده تمثیل شوې وه، باید بریژنیفي روسیه د افغانستان او پرچمي حکومت د پرېښودلو په فکر شوی وای، لکه چې انګرېزانو څه باندې سل کاله د مخه په کابل کې د دوی په متجاوزو لښکرو باندې د افغانانود لوی پاځون له امله همدغسې وکړل؛ خو روسانو او پرچمي حکومت برخلاف تر هغه وروسته پدې پیل وکړ چې هر راز مخالفت – وسله وال یا بې وسلې، ډله ییز یا فردي، فکري یا عملي، بالفعل یا بلقوه حتی د رسمي ګوند د ننه یا د باندې – په خپلو ټولو امکاناتو سره چې په هغو کې له هستوي بمونو پرته د لایزرو وړانګو او کېمیاوي موادو په شمول د عصري موټریزې نظامي قواوو ټول انواع شامل دي، په ممکن شدت او سرعت وځپي. ډېر ژر د تعلیمي کال په شروع سره په پسرلي کې چې د ښار د ښوونځیو نجونو، هلکانو او د پوهنتون ښځینه او نارینه محصلانو دواړو په پرلپسې ډول په مظاهرو لاس پورې کړ، افغانانو په عمل کې ثابته کړه چې د دوی علم او معارف ته منسوب انسانان هم له روسې او پرچمي حکومت سره په مخالفت کې تر عامو خلکو او نورو څخه کم نه دي. له هغه وروسته د عمومي پاڅونونو په ظاهري ناکامۍ سره د روسې پوځ او پرچمي حکومت د چنګیزي بې رحمۍ په مقابل کې مقاومت

له عمومي پاڅون نه په چريکي شکل ته واړول شو. د جنګ په شديد کېدو او پرلپسې کېدو سره په ميليونو انسانان له ښارونو او کليو نه مهاجر شول او د دوی ځوانانو د اسلامي او مجاهدو ګوندونو ليکې ښې پياوړې کړې.

نور نو د مقاومت نېغ بار د چريکي مجاهدينو تنظيمونو او ګوندونو په اوږو شو. د آزادۍ جنګ د چريکي په عصري وسيله تربيه شويو مجاهدو ميړونو د يرغل او تېښتې کار شو. جنګ اوږد شو او مجاهدين سره له دې چې له يوه ستر او بې رحمه قدرت سره جنګېدل، خواشيني نه شول، مورال يې تل لوړ و او په خپل بري ټينګ معتقد وو. د مقاومت ګوندونه ډېر شول، که څه هم زياتره يې په خپلو منځو کې سره بې اتفاقه وو.

شيعه مجاهد ګوندونو په ايران کې خپل مراکز پرانېستل او چريکانويي له هزاره جات څخه د حکومت عاملين وشړل، خو د مقاومت سترو ګوندونو پېښور د خپلو مرکزونو په حيث غوره کړ او له دغه ځای نه يې د وطن د جهاد کولو او خپلواکۍ ګټلو مشرتابه ته په حېرانونکې ميړانې او زړورتيا سره دوام ورکړ.

## د مقاومت د غورځنګ په باب د جهان توجه

اوس نو د آزادۍ د جنګ په پياوړي کېدو، سرتاسري او ملي کېدو او په ولس کې د بېخ په نېولو او ټينګېدو سره نړېوال له خپلې لومړنۍ بې تفاوتۍ نه د مرستې کولو او د شوروي د يرغل د درولو په فکر کې شول، لکه چې د چين نماينده د ملګرو ملتونو په يوې عمومي اسامبلۍ کې څرګنده کړه چې افغانان په خپل مقاومت سره نه يوازې د ځان لپاره، بلکې د سيمې د خلکو لپاره هم خدمت کوي. د پاکستان مشر جنرال ضياالحق په وار وار خپلو وطنوالو ته په خطاب کې وويل چې د افغانستان مسلمان خلک نه يوازې د خپل ملک لپاره، بلکې د پاکستان لپاره هم جنګ کوي.

په لويديځ کې دغه فکر پيدا شو چې کېدلی شي له مجاهدو افغانانو سره د مرستې له لارې شوروي د دوی د ملک په جبو کې داسې ګېر کړل شي چې بيا د دغې سيمې په کوم بل ناپېيلي هېواد باندې و نه دانګي او په دې ډول منځنی ختيځ او سهيلي آسيا د دوی له دايمي خطر نه په امن کې پاتې شي او کمونيزم به د افغانانو په وسيله قبضه او مهار شي. تصادفي نه

وه چې په افغانستان باندې د شوروي پوځ له برید نه په وروستۍ فضا کې د لویدیځ په لویو ملکونو لکه امریکې، برتانیې او جرمنې کې د ملي انتخاباتو په نتیجه کې په زیات اکثریت سره محافظه کار ګوندونه په ترتیب سره د رونالډ ریګن، مارګریټ تاچر او هیلمیټ کول په مشرتابه سره واکمن شول او حکومتونه یې د شوروي په مقابل کې تر خپلو دیموکراتو او سوشیلیست دیموکراتو حکومتونو نه یې په نړیواله سویه ټینګ دریځ غوره کړ. په دې جمله کې ریګن داسې قومي نظامي پروګرامونه و اېستل چې په امریکې کې تر ایزنهار نه وروسته بل جمهور رییس نه وو ایستلي. په دغو پروګرامونو کې د ستراتیژیکې دفاع ابتکار تر نامه لاندې چې د سترو د جنګ په نامه یادېږي او په اروپا کې د داسې اتومي توغندیو په ځای کول هم شامل وو چې په شوروي کې یې خپل اهداف له پنځو نه تر اتو دقیقو پورې وېشتلی شول. د شوروي لپاره چې د امریکې په شان نه قوي اقتصاد او نه لوړه غني ټکنالوژي لرله، د اغېزناکې مقابلې او سیالۍ توان نه و.

زمونږ د سیمې لپاره چې د افغان د آزادۍ په جنګ باندې یې نېغ په نېغه اغېزه لرله د امریکې له خوا پاکستان ته د هغو ډېرو اقتصادي او نظامي کریډیټونو او مرستو منل وو چې په هغو سره په هغه ملک کې سیاسي ثبات راغی او پاکستان وکولی شول د افغاني مهاجرینو او مجاهدینو ملاتړ د اسلامي او د ورورۍ او ښه ګاونډیتوب په وجه وکړي او په عین حال کې خپل ځان چې اصلاً د اسلام په اساس جوړ شوی و او اوس د هندویزم له خطر نه علاوه د کمونیزم له خطر سره هم مخامخ شوی و، بچ کړي. د ریګن حکومت په عین حال کې د کانګریس یعنې د خپل ملت په سپارښتنه له مجاهدینو سره په نظامي مرستې کولو هم پیل وکړ. دغو مرستو له هغو سره مرستو سره یوځای چې ځینو اسلامي هېوادونو په تېره سعودي عربستان، مصر، چین او حتی یو شمېر انفرادي مسلمانانو کولې، ټول مجاهدین په دې قادر وګرځول چې په پېچلو نظامي وسلو سمبال شي. د دغو وسلو په ډله کې له ځمکې نه ځمکې ته د مزایل په نامه راکټونه او په خاص ډول ۱۹۸۶نه را په دې خوا د سټینګر او بلوپایپ په نامه له ځمکې نه هوا ته راکټونه هم شامل دي چې دا دی مجاهدینو اوس د هغه په برکت د وطن د آزادۍ په جنګ کې د خپلو اوسپنیزو ارادو او پیاوړي ایمان له برکته په افغانستان کې د شوروي او

د کابل د حکومت هوايي قوه تر ډېره حده بې اغېزې کړې ده او له دې سره جوخت يې لکه په چريکي جنګونو کې اوس په جبهه يې منظمو جنګونوکې هم په مقابل لوري لاسبري تر لاسه کړي، لکه چې دغه حقيقت په دې تازه وختو کې د ارغنداب په يوه مياشتني جنګ او د ځاځيو په جنګ او تر هغو دمخه د لومړي ځل لپاره په ۱۳۶۴ـ کې د پکتيا د ژورې په جنګ کې ثابت شوی دی. دا چې د لومړي ځل لپاره د ۱۳۶۴ په بهير کې، او له ۱۳۶۵ نه را په دې خوا د کابل او شوروي حکومتونو د ملي او سراسري روغې جوړې او ايتلافي حکومت او د اساسي قانون تدوين نارې سورې پورته کړې او د حکومت په ډېر زشت چنګيزي چلند کې يو څه نرموالی راغلی، د دغو حکومتونو د لويانو انسان دوستي او سوله دوستي نه ښيي، بلکې د محترمو او قهرمانو پياوړو مجاهدينو د پخې ارادې، ټينګ ايمان، ټينګ استقامت او حيرانوونکو برياليتوبونو په مقابل کې د دغو مستبدانو د ناچارۍ عکس العمل دی چې بې له هغو نه يې ټول سياستونه شنډ شوي دي، بله مناسبه لاره نه وه ورته پاتې.

## ډيپلوماټيکي کوښښونه

د ليکنې په دې برخه کې د خبرو اترو او ډيپلوماسۍ له لارې د افغانستان د کشالې د حل په باب په لنډ ډول يو څه ويل لازمي ښکاري. اته کاله وشول چې جنګ روان دی او موضوع حل شوې نه ده او که څه هم د آزادۍ مجاهدينو د يو ستر جهاني قدرت په مقابل کې په دغه پسرلي کې هم حيرانوونکي برياليتوبونه تر لاسه کړي دي، يعنې دغه قدرت يې دلته په ګونډو کړی او ګوډاګی حکومت يې ورته ناکام کړی دی؛ حکومت ښارونه او ښارونو پورې تړلې برخې، ستراتيژيکي نظامي مقاومونه د پوځ له لارې تر کنټرول لاندې لري او تل هڅه کوي وړې وړې امنيتي پوستې يو ځای بل ځای جوړې کړي، خو هغه مجاهدين له مينځه وړي. له بلې خوا مجاهدين چې د هېواد په سلو کې د اتيا برخو په شاوخوا کې په شريکي ډول تر لاس لاندې دي، دغه يادې شوې سيمې نيولی نه شي او که په نيولو يې قادر وي، ساتلی يې نه شي. د حکومت حال هم د مجاهدينو په سيمو کې لړ و ډېر همدغسې دی. يو راز سرحدات د دوی تر مينځ شخصي شوي دي. په

دې حال حکومت په زور، هغه هم د شوروي په زور حکومت کوي او مجاهدین د ولس د نمایندګانو او حکومت په څېر حکومت کوي؛ نو په افغانستان کې د خبرې مینځ، د کشالې اصلي غوټه او د غوټو غوټه، اول د شوروي نظامي شته والی او ورپسې په انتقالي دورې کې د یو ایتلافي یا یوه موقتي حکومت مینځ ته راتلل دي. که د شوروي پوځ له افغانستان نه ووځي او یا ووېستل شي، موضوع په خپله حل ده یا لږ تر لږه د اساسي حل لپاره یې لاره هواره ده.

د ملګرو ملتونو په نظامي شته والي او منځګړیتوب سره لومړی د موقتي انتقالي حکومت او وروسته د آزادو او سرتاسري انتخاباتو له لارې یو ټینګ ملي حکومت مینځ ته راشي؛ خو شوروي خپلې قواوې تر اوسه نه دي اېستلي او اېستل یې په داسې شرایطو پورې تړلي چې هغه د مجاهدینو لپاره د منلو وړ نه دي.

شوروي او دغه حکومت له هماغه اول نه ویلي چې که له باندې نه «وسله والې مداخلې» بندې شي او د دغو « نه مداخلو» په باب بین المللي تضمینونه ورکړی شي، د شوروي حکومت به د کابل له حکومت سره له موافقې نه وروسته خپل پوځ له افغانستانه وباسي. په ډېر ساده عبارت د دې معنی په افغانستان کې د شوروي د لاسپوڅي حکومت تضمینول او دایمي کول دي او دا له دې امله چې په څرګند ډول د ملي حاکمیت منافي دی، نه د ولس او نه مجاهدینو لپاره د منلو وړ دی او نا باید وي. د ملګرو ملتونو تر څارنې لاندې د کابل او پاکستان د حکومت غیر مستقیمې خبرې اترې چې د ۱۹۸۲ کال له اپریل نه تر اوسه پورې په اوږودو وقفو کې شوې، په همدې علت ناکامې شوې. د ناکامۍ غټ ټکی له افغانستانه د شوروي پوځ د وتلو زماني جدول دی. شوروي په اول سر کې یې په څلورو کلونو ټینګار کاوه، اوس یې اتلس میاشتې ټاکلي او پاکستان وایي چې شوروي پوځ د اوو میاشتو په موده کې ووځي. په ظاهر کې د مخالفت دغه ټکی هم د حل وړ ښکاري، خو اوس د شوروي حکومت دغې موافقې ته د رسېدلو نه دمخه غواړي چې په افغانستان کې په انتقالي دورې کې یعنې د شوروي قواوو د وتلو په دوره کې پخوا له دې چې د انتخاباتو له لارې یو ملي حکومت مینځته راغلی وي، دغسې یو ایتلافي حکومت جوړ شوی وی چې هغه له شوروي

سره په دوستۍ معتقدوي.

د کابل د حکومت وروستۍ ټولې هلې ځلې چې د سراسري روغې جوړې، د ایتلافي حکومت د جوړېدو په منظور او د څو ګوندیز حکومتي سیستم په لور کېږي، د همدغه ټکي لپاره او هم د دې لپاره تجویز شوې چې په خپله لږ تر لږه د یوه ګوند په حیث پاتې شي. له دغه حکومت سره ایتلاف کول اول اووه ګوني اتحاد او وروسته پخواني پاچا په غوڅه توګه رد کړی دی. په دې حال کې په افغانانو کې دننه په وطن کې دي که دباندې، بل داسې قوت دغسې بل تنظیم چې د مملکت په سیاست تاثیر ولري، نشته؛ چې له دغه حکومت سره ایتلاف وکړي. ممکن حکومت په خپله ساحه کې د خپلې خوښې ډلګۍ او اشخاص د ایتلاف په منظور را دمخه کړي، خو هغه به له پروپاګند نه پرته بل څه نه وي. په دې باب نور ټینګار د جنګ معنی لري او شواهد ښیي چې ګورباچوف په افغانستان کې د اوږدې مودې پاېدونکی جنګ نه غواړي، خو د مارګریت ټاچر په قول په دې نه پوهېږي چې دغه کشاله څنګه هواره کړي. حقیقت دا دی چې مجاهدو ګوندونو د جنګ کولو قابلیت او استعداد هسې چې په دغو پاڼو کې بیان شوی، ثابت کړی او د دې حوصله، توان او اراده لري چې د آزادۍ جنګ ته د بري تر سرحده پورې دوام ورکړي.

د شوروي حکومت په دې ښه پوهېږي، خو سره له دې هم غټه غلطي یې په دې کې ده چې تر اوسه نه دی حاضر شوی دغه حقیقت ومني چې مجاهد ګوندونه یعنې اووه ګونی اتحاد د افغانستان په اوسني سیاسي ډګر کې تر هر بل لوري نه ډېر اغېزمن دی او هېڅ راز پرېکړه یې د هغو له منلو څخه عملي کېدلی نه شي او که عملي هم شي په دغومره قیمت به تمام نه شي، هېڅ لوري ته به ارزښت و نه لري. معلومه ده چې ګورباچوف شوروي د امریکې غونډې چې له ویتنام نه بې له کوم قید او شرط نه په یو ځل ووتله، حوصله او لرلید نه لري. داسې ښکاري چې شوروي په آینده کې له نادوست افغانستان نه په وېره کې وي.

## له افغانستان نه د شوروي وېره

دغه عنوان به په موضوع کې نا وارد لوستونکي شايد متعجب کړي؛ خو په دې کې شک نشته چې شوروي ته به نا دوست افغانستان يعنې په ولس متکي ملي افغان حکومت حتماً د خلق ديموکراتيک ګوند له مشرانو سره حساب کوي، له شوروي نه به د جنګ غرامات غواړي، هغه کريډيټونه به ضبطوي چې شوروي تر اوسه افغانستان ته ورکړي او هغه تړونونه به ټول لغوه کوي چې تر اوسه له شوروي سره شوي دي او سربېره پر دې خپلې پولې به له شوروي سره تر هغو تړي چې شوروي ژمنه وکړي چې بيا به په افغانستان کې مداخله نه کوي.

سربېره پر دې د دې احتمال هم قوي ښکاري چې افغانستان به د يو اسلامي حکومت په حيث د مرکزي آسيا له مسلمانانو سره د خپلې ورورۍ او اسلامي عنعنې مرستې کوي. دا يو ثرګند حقيقت دی، که څه هم مداخلې او شوروي کمونيستان يې نه منې چې برژنيفې روسيې په خپل سر په افغانستان باندې پوځي يرغل وکړ، يو افغان حکومت يې که څه هم د دوی خپل کمونيست و، له مينځه يووړ او په دغو اتو کلونو کې يې دننه د افغانستان باندېو، کليو، درو او دښتو او غرو کې له ځايي خلکو يعنې افغانانو سره جنګ وکړ او تر اوسه هم جنګ کوي، نه لکه څنګه چې دوی ادعا کوي د «نړۍ خور امپرياليزم» او«د سيمې د ارتجاع» او «نا اعلان شوی جنګ» په مقابل کې له افغانستان څخه دفاع کوي. په ډېر لنډ ډول د شوروي اتحاد لنډ پارو حکمرانانو په دغو تېرو لسو کلونو کې په افغانستان کې په خپلو چنګيزي او فرعوني کړو سره افغانان خپل عمومي دښمن ګرځولي دي.

## د شوروي د يرغل منطق

د کابل او شوروي حکومتونو په کراتو ادعا کړې چې شوروي پوځ افغانستان ته د افغانستان د حکومت په غوښتنه او د ۱۹۷۸ کال د دواړو حکومتونو د دوستۍ تړون له مخې او د ملګرو ملتونو د منشور له ۵۱مې مادې له مخې شوی. دا ټولې هسې د زور خبرې او باطلې دي. د شوروي حکومت دغه تړون د کابل له دغسې حکومت سره کړی چې قانوني نه و او له کودتا سره مينځته راغلی و او ولس له هماغه پيل نه ورسره په جنګ شو او رد يې

کړ. څه وخت چې شوروي په افغانستان تېری وکړ، په دغه ملک کې تر اول نه زيات د ملي واک په سر داخلي جګړه روانه وه او د کابل کودتا يې د دعوا يوه برخه وه. حتی همدا کودتايي حکومت هم له شوروي څخه نه دي غوښتي چې د تش په نامه باندني خطر په مقابل کې له هغه سره نظامي مرسته وکړي. که دغسې مطالبه يې کړې وای، ځنګه چې دا د جنګ موضوع ده، هغه بايد دوه خپلواکو هېوادونو تر مينځ حتماً د کومې رسمي يعنې حکومتي ليکنې سره شوې وای او شوروي بايد دغه سند خپور کړی و او يا يې اوس خپور کړي. واقعيت دا دی چې شوروي په خپل سر او خپل خاص هدف ته د رسېدو په مقصد، چې وروسته به پرې بحث وشي، په افغانستان باندې نظامي يرغل کړی دی او په خپله دغه تېري سره يې د افغانستان خپلواکي او د افغانانو ملي حاکميت نقض کړی دی، که دغه تېری د ملګرو ملتونو له ۵۱مې مادې سره برابر وای، لکه ځنګه چې د کابل او شوروي حکومتونه ادعا کوي، نو بيا ولې په خپله د ملګرو ملتونو عمومي اسامبله هر کال په غوڅ اکثريت سره سپارښتنه کوي چې بايد باندينی قواوې له افغانستان څخه ووځي؟ د شوروي عمالو په خپلو وينااوو کې تر اوسه پورې افغانستان ته د پوځ استولو د په ځای ښوولو لپاره درې ډوله دلايل راوړي دي. يو دا چې د دوی جنوبي پولې مصئونې شوي وي، بل دا چې په افغانستان د امريکې«د نړۍ خور امپرياليزم» له خوا تهديد شوی و او بل دا چې د انقلابي او دوست افغانستان سره «انقلاب ضد» او « ارتجاعي داړه مارو» په ټکولو کې د شوروي د وروری انټرنيشنليستي مرسته لازمي شوې وه. د شوروي دغه دلايل ځنګه چې د زور دلايل دي، هېڅ سليم عقل ته د منلو وړ نه دي. څوک به په دې باور وکړي چې خلقي يعنې کمونيستي حکومت به د شوروي جنوبي سرحدات تر تهديد لاندې ونېولی شي؟ بله دا چې د کوم ملک سرحدات چې يوازې د خپل حکومت ته يې نامصئون ښکاري، هغه حکومت ته حق ورکوي چې په ګاونډي هېواد باندې په نظامي يرغل لاس پورې کړي. که هر حکومت دغسې ادعاګانې وکړي او په خپلو دغسې ادعاګانو عمل وکړي، بين المللي حال به څه شکل ونيسي؟ آيا په هغه وخت کې او يا له هغه وروسته په افغانستان کې د شوروي له پوځ نه غير د کوم بل ملک پوځ را ننوتلی و او دغه ملک يې تهديد کړی و؟ آيا له افغاني مجاهدينو نه غير چې د نوي

کودتايي کمونيسي حکومت په مقابل کې د سياسي خلا په پيدا کېدو ورسره پاڅېدلي وو، په ټول ملک کې کوم بل مقابل قوت موجود و؟ د هغې ورځې شورويانو او د کابل د حکومت د مشرانو په خوله دغه «يوڅو داړه ماران» او په پوندېو او ډالرو پلورل شوي اجيران ولې بيا هم د دوی په خوله د نن ورځې « مرور ورونه» شوي دي؟ آيا شوروي د دې قانوني حق لري چې د خپل «دوست» کودتايي حکومت د ټينګولو لپاره د هغه له مخالفينو سره د هغوی په خپل ملک کې مقابله وکړي او په دې ډول د هغه ملک په کورنۍ جګړه کې عملاً نظامي برخه واخلي؟ آيا شوروي له ۱۹۷۹ څخه تر اوسه پورې په دغه ملک کې له افغاني مجاهدينو نه غير له کوم ايراني، پاکستاني، جرمني يا امريکايي عسکر سره مقابله کړې؟ که د دوی ټول دلايل دلته يوازې د يوې شېبې لپاره په حقه وبولو، دوی ولې خلقي حکومت د حفيظ الله امين په سروالي نسکور کړ او په ځای يې پرچمي حکومت د تورمخي او مريي صفته ببرک کارمل په مشرۍ کېښېنوه؟ له داخلي پرچمي کمونيستانو، شوروي کمونيستانو او په جهان کې د شوروي په پله روانو کمونيستانو څخه پرته نور ټول پوهېږي چې د دوی دلايل يوازې د زور او پوچ دلايل دي. سره له دې دوی تر اوسه هم د افغانستان په مقابل کې د « امپرياليزم»، «ارتجاع» او د «نااعلان شوي جنګ»[1] نارې سورې اووم آسمان ته جګې کړي دي. معلومه ده چې شوروي په دغو نارو سورو سره غواړي خپل تېری او هدف پټ کړي او دننه د خپلو وطنوالو او بېرون نړېوالو اذهان ګډوډ کړي او پرچمي حکومت د وظيفې له مخې دغه نارې په ډېر تاو سره ګردان کړي.

### د شوروي د يرغل اصلي هدف

په افغانستان باندې د شوروي د تېري د اصلي هدف په باب ډېر روايتونه کېږي. زياتره اورېدل کېږي چې هدف دافغانستان له لارې د لوی پيټر د

[1] شوروي اوس له دغې پوچې ادعا نه په خپله تېر شوی دی. شوروي هغه وخت له دغې ادعا نه تېر شو چې ګورباچف په تېر دسبمر کې په واشنګټن کې په خپلې مطبوعاتي مرکې کې د افغانستان جنګ د «داخلي خونړي جنګ» په نامه ياد کړ. دا وينا بيا هم سمه نه ده، ځکه چې دا په اصل کې د افغانانانو د آزادۍ يعنې له روسي يرغلګرو سره د افغانانو جنګ دی، نه داخلي جنګ.

وصیت لـه مخـې د هنـد سـمندر یعنـې تـودو او خلاصـو اوبـو تـه ځـان رسـول دي. دا یـو پخوانـی فکـر دی. دا ممکـن د شـوروي د ډېـرو لېـرې جهـاني اهدافـو لـه جملـې څخـه وي، خـو د حـاضر وخـت لپـاره مـورد نـه لـري. د هنـد سـمندر تـه رسـېدل د شـوروی لپـاره هغومـره جهـاني اهمیـت نـه لـري، کلـه مدیترانـې تـه د هغـه رسـېدل چـې یـې لـري. د هنـد لـه سـمندر څخـه هغـه خـوا داسـې سـیمې نـه شـته چـې شـوروي یـوازې لـه دغـې لارې ورتـه ورسـېږي او خپـل نفـوذ پـه کـې خپـور کـړي. د دغـه فکـر لـه مخـې افغانسـتان د شـوروي پـه اصلـي هـدف کـې نـه راځـي، پـه داسـې حـال کـې چـې پـه نظامـي لحـاظ د شـوروي لپـاره ډېـر مهـم دی او پـه بالقـوه ډول نهایـت شـتمن. لـه هغـه وروسـته چـې پـه دغـه ملـک کـې سـیاسي ګـډوډي او خـلا پیـدا شـوې، شـوروي تـه د دې موقـع برابـره شـوې چـې هغـه پـه خپـل موجودیـت سره ډکـه کـړي او ورسره د ایـران چـې هلتـه هـم ان د مخلـوع شـاه پـه وخـت کـې ګـډوډي او بـې ثبـاتي مینـځ تـه راغلـې، لـه دریـو خـواوو څخـه چارپېـره کـړي او د منځنـي ختیـځ د تېلـو پـه سیمه کـې خپـل نفـوذ خپـور کـړي او لـه دې ناحیـې څخـه تېلـو تـه محتـاج صناعتـي ملکونـه تـر خپـل تاثیـر لانـدې راولي. پـه دې ډول پـه نسـبتاً لنـډه مـوده کـې بـه د شـوروي لپـاره د دې امکان برابـر شي چـې د افغانسـتان پـه زراعتـي او صناعتـي پوټنسـیل شـتمنیو سره پـه خپـل ملـک کـې مړ ژوانـدی کمونیـزم ژونـدی او فعـال کـړي. د دغـه حکـم د پـر ځـای ښـوولو لپـاره د یـو څـو اساسـي حقایقـو ذکـر لازمـي ښـکاري.

د افغانسـتان د حاجـی ګـک وسـپنه د کمیـت او کیفیـت لـه مخـې پـه ټولـې نـړۍ کـې پـه دوهمـه یـا دریمـه درجـه کـې راځـي. د کابـل د عینکـو د مسـو کان ښـخـې پراخـه سـاحه نیولـې او د تـازه نـا تائیـد شـویو خبرونـو لـه مخـې پـه دغـه پـراخ کان کـې پـه مسـو سربېـره طـلا او اوسـپنه هـم پیـدا شـوي دي او پـه هـر حـال څـوک پوهېـږي چـې مـس پـه دنیـا کـې کـم شـوي او صناعـت کـې د اسـتعمال ډېـر مـوارد لـري.

افغانسـتان هـم د تېلـو پـه لحـاظ پـر ځـان بسـیا پوتنسـیل او هـم ډېـرې قیمتـي ډبـرې لـري چـې لـه هغـو نـه یـې د بدخشـان لاجـورد جهـاني نـوم ګټلـی. ګاز یـې صادریـږي او د ځینـو پـه قـول دغـه ملـک د یورانیـم ډبـرې هـم لـري چـې یـوه سـیمه یـې د نیمـروز پـه ولایـت کـې خـان نشـین نومېـږي. افغانسـتان د اوبـو د برېښـنا د تولیـد پـه ظرفیـت کـې شـاید پـه دنیـا کـې بېسـارى ملـک اوسي،

ممکن د ځمکې لاندې دغسې ډېرې نورې معدني شتمنۍ هم ولري چې یوازې روسانو ته به ښکاره وي چې کلونه کلونه یې ټول ملک سروې کړی. دا ملک په زراعتي پوتنسیل کې هم بېخي غني دی. د هېواد په غرب او شمال کې په خاص ډول په میلیونونو جریبه هوار مکین میدانونه په بندونو خړوبېدلی او د کرکېلې لپاره برابرېدلی شي. په دغه ملک کې د ښې او متنوع آب و هوا په موجودیت سره له ټراپیکي زون څخه د غیر نور هر قسم محصولات کرل کېږي، په داسې حال کې چې شوروي د خپل نړدې درې سوه میلیونو وګړو لپاره کافي غله دانه نه لري او هر کال خپل الماس او طلا په زیات مقدار خرڅوي، تر څو خارجي اسعار په لاس راوړي او په هغو سره له پانګه والو هېوادونو څخه د خوړولو غله دانه وارده کړي، چې دا شوروي اویا کلن سوشلستي سیستم سوشلستي زراعت لپاره ناکامي او شرم ګڼل کېږي. په داسې حال کې چې افغانستان په لوړه سویه د صناعتي کېدو او زراعتي پوره پوتانسیلونه لري او ټول نفوس یې هم پنځلس میلیونه دی؛ ویل کېږي چې دغه ملک د امریکې د ژوند په سویې لرلې سره د شپېتو میلیونو وګړو لپاره ښه مساعد دی. دا چې روسانو خلقي حکومت له مینځه یووړ او په ځای یې پرچمیان ودرول، د دې لپاره نه و چې خلقیان یې بد اېسېدل او پرچمیان یې سکني ورونه وو، بلکې د دې لپاره وو چې د وروستیو له لارې د افغانستان پورته یادې شوې شتمنۍ په کوم شکل سره خپلې کړي او خپل مړ ژواندی کمونیزم پرې وغوړوي.

خلقیان نشنلیست کمونیستان دي او غوښتل یې په کمونیستي اصولو سره افغانستان آباد کړي، په داسې حال کې چې پرچمیان انټرنیشنلست کمونیستان دي او غوښتل یې (او اوس هم غواړي) د افغانستان په قیمت سره د کمونیزم لپاره خدمت وکړي؛ نو ځکه لومړني مایل وو، شوروي د خپل ملک واکداران ووینې، په داسې حال کې چې د وروستیو په وخت کې د حکومت واک د روسي مشاورینو په لاس کې پرېوت.

## شوروي په افغانستان کې د ضعیف او غیر ملي حکومت په هڅه کې

خبره که لنډه شي، که څه هم لا دمخه اوږده شوې، د ایتلافي حکومت د تجویز په ناکامېدو سره نښانې څرګندې شوې چې د شوروي حکومت په

خپلو ډیپلوماټیکي پراخو فعالیتونو سره هڅه کوي په افغانستان کې دغسې ملي حکومت مینځ ته را نه شي چې له شوروي څخه غرامات وغواړي او داسې نور، دغه ټکي یو څخه سپړل غواړي.

د ګورباچف شوروي حکومت امریکې ته له اروپا څخه د اتومي راکټونو د لرې کولو په باب نه فکر کېدونکي امتیازات ورکړي او په دې باب ممکن د دغه کال تر پایه د دغو او داسې نورو مهمو هستوي محدودي خلع سلاح په باب موافقې لاسلیک شي او ګورباچف له ریګن سره وګوري. د دغو امتیازاتو په پرتله ګورباچف تر اوسه د افغانستان د کشالې د رفع په باب کوم اساسي کار نه دی کړی، که څه هم دوه کاله یې د واکمنۍ کېږي. د ځینو لومړنیو او تر اوسه ناکافي شواهدو له مخې حدس وهل کېږي چې ګورباچوف به ریګن ډاډه کړي چې دی حاضر دی له افغانستان څخه خپل پوځ وباسي، خو چې امریکا افغاني مجاهدینو ته پرمختللې موثرې وسلې په تېره شتېنګر ور نه کړي او په پاکستان فشار واچوي چې نور وسله وال مجاهدین افغانستان ته پرېنږدي. وروسته له دې چې د بربنډ او بې رحمه زور له لارې افغانستان لاندې نه شو، ګورباچف د همدغې با هغې ته بلې ورته دیپلوماتیکي لار نه په دې هڅه کې ښکاري چې په افغانستان کې د ملي قوي حکومت د مینځته راتللو مخه ونیسي او په هر حال په هر راز آینده حکومت کې د خلق دیموکراتیک ګوند لږ تر لږه برخه ولري. په دې ډول یعنې د مجاهدو ملي ګوندونو په کمزوري کېدو سره به د ګورباچف په فکر د کابل د حکومت لپاره ممکنه شي چې له نورو اعتدالي ډلو او اشخاصو سره په انتقالي دورې کې یو ضعیف ایتلافي حکومت منځ ته راولي چې د حاضر وخت لپاره به د شوروي له لرې نه پرې نفوذ ولري او په هر حال له افغانستان نه به د شوروي لاس په غوڅه توګه قطع شوی نه وي.

ګومان کېږي چې د نورو دلایلو تر څنګ د ایران د اسلامي جمهوریت خارجي سیاست امریکا او شوروي دواړه دغسې لوري نیولو ته هڅولي وي، لکه چې د فارس د خلیج د جنګ د ختم په باب دغه دوه ستر قدرتونه له کلونو کلونو وروسته دغسې یو ګډ تفاهم ته رسیدلي هم دي. دوی دواړه به په یو شان، یا لږ و ډېر تفاوت سره دې ته متمایل نه وي چې د افغانستان آینده حکومت یوه ورځ د دواړو لپاره سرخوږی پیدا کړي، نو ځکه دواړه خواوې

به کوښښ وکړي چې په افغانستان کې د بېلو فرقو نه جوړ یوازې کوم اعتدالي غوندې حکومت مینځ ته راشي. دا به د ګورباچف محاسبه وي. په دې حال کې به لویدیځ علاقمند هېوادونه په تېره امریکا او پاکستان څه وکړي؟ طبعاً اوس د دغې پوښتنې ځواب په مشخص ډول نه شي ورکول کېدلی. خو د افغانانو د موجودې قهرمانې مجاهدې په رڼا کې چې د نړۍ په دغې مهمې سیمې کې یې د شوروي د کمونیزم په مقابل کې ښودلی، یو څه ویل کېدلی شي.

## افغانستان د اسلامي نړۍ یو نه بېلېدونکی جز

افغانستان په خپلو حاضرو مجاهدو او مجادلو سره یو ځل بیا ثابته کړه چې دوی د مسلمانې جنوبي آسیا او منځنۍ ختیځ د نړۍ یوه نه بېلېدونکې برخه ده. د دغو سیمو مسلمانانو او حکومتونو هم د دغو مجادلو قدر کړی او کمکونه یې ورسره کړي دي. د یو شمیر ملکونو په تېره د مصر، عربستان او کویټ مسلمانانو په خپله رضا بس د اسلامي جذبې په تحریک سره په ډېرو ستونزو سره ځانونه افغانستان ته رسولي او له خپلو افغاني ورونو سره خوا په خوا له ملحدو روسانو سره جنګېدلي او ځیني یې لا شهیدان شوي هم دي. شتمنو یې پریمانه مالي مرستې ورکړې دي؛ خو حکومتونو یې په خپلو مرستو کې د شوروي عامل په نظر کې نیولی او احتیاط یې کړی دی. یو څو په اصطلاح راډیکالویي (لکه سوریه، دیموکراتیک یمن، عراق او لیبیا) لا د افغانستان په باب د شوروي متجاوز سیاست غندلی هم نه د او د اسلامي کنفرانسونو په پرېکړه لیکونو کې د شوروي نوم هم نه دی اخېستل شوی، بلکې ویل شوي چې « باندینۍ قواوې» دې له افغانستان څخه ووځي. تر اوسه هېڅ یو اسلامي حکومت (حتی هېڅ حکومت) د افغانستان په سر له شوروي سره خپل روابط نه دي قطع کړي؛ خو په نورو اړخونو کې په اول سر کې پاکستان او بیا ایران له افغانانو سره اساسي مرستې کړې دي.

ډېره ستره مرسته دا ده چې د ایران او پاکستان جمهوریتونو په ګډه د پینځو میلیونو افغانانو په شاوخوا کې او د خلیج عربي هېوادونو په لکونو مهاجرینو ته په خپلو ملکونو کې ځای ورکړی دی. البته د مهاجرت دغسې ژوند بې له ستونزو څخه نه دی، خو دا چې په دغومره شمېر افغانانو د

تباهی نه د ځان ژغورلو په وخت کې د ژبنیو او دیني ورونو په دغو ګاونډیو ملکونو کې د پناه ځایونه ومیندل، د دوی او دغو کوربه خلکو تر مینځ ډېرکلک پیوستون ښیي او د هغه په عکس له شوروي کمونیزم او ټوټالیټرین (کل اختیار) طرز څخه د هغو کرکه او بېزاري ثابتوي. دا چې د کابل حکومت او شا ته یې د شوروي حکومت په داسې حال کې چې له پاکستان سره سخت مخالف دي، له دې نه عاجز دی چې سرحدات وتړي او افغانانو پرېنږدي چې پاکستان ته واوړي، څرګندوي چې دغه پیوستون عضوي او واقعي دی. دغه واقعیت په افغانستان کې د شوروي او کمونیزم له ناکامی سره هم اغېزمنه مرسته وکړي او هم دواړې سیمې او دواړه ولسونه یې تر هر وخت نه زیات نور هم سره نږدې کړي دي. دغو ټولو واقعیتونو په عمل کې ثابته کړې چې هغومره چې افغانستان د یوه ملک په حیث او افغانان د یو ملت په حیث د دغه اسلامي مدنیت یوه برخه ده، د بل هېڅ مدنیت برخه نه ده. د همدغه اسلامي پراخ مدنیت یو واحدګی د ځینو څرګندو او ژبنیو، عرقي او جغرافیوي ځانګړتیاوو په بنا پاکستان، ایران او افغانستان دې په دې حال کې دا به د دغو هېوادونو په اساسي ګټه تمامه شي، چې مناسب وخت کې په اول ګام کې د افغانستان او پاکستان او په بل ګام کې د دوی او ایران تر مینځ د کوم ډول سیمه ییزې اتحادیې تجویز وشي، او دغه اتحادیه د منځني ختیځ له اسلامي جهان سره خاصه رابطه ولري. په هر حال باید د افغانستان او پاکستان تر مینځ په اول سر کې د انسانانو د تګ راتګ او د سوداګرۍ په ساحه کې بندیزونه تر آخري ممکن حد پورې لرې شي او بیا نور لازمي ګامونه وار په وار واخستل شي چې په هغو کې به د کراچي بندر کې د افغانستان لپاره د یو خاص ځای تخصیصول ډېر مهم او مفید وي. روسي تېری او خطر دغسې څه د دغو ملکونو لپاره حتمي او اسان کړی دی.

### افغانان د کمونیزم په ضد

افغانانو په خپلو دغه پرلپسې او نه ستړې کېدونو مجاهدو او مجادلو سره ثابته کړه چې دوی کمونیزم له یوې مخې ردوي او په دغه هکله له شوروي غونډې یو ستر قدرت سره د ډله ییزې قربانۍ ورکولو تر آخري سرحده پورې ولاړ او تیار دي. دوی په عین حال کې د کمونیزم د حکومتي ټوټالیټرین شکل

او مطلقیت هم نه مني، که څه هم دوی په خپل کلتور کې په اجتماعي او سیاسي چارو کې له زور او تشدد څخه کار اخېستل رواج لري. دوی دا هم ثابته کړه چې په هماغه اندازه له یو ګوندي سیستم سره مخالف دي او په یو راز ځانګړي کرښته او شډل افغاني انډیویجولیزم باندې مین دي چې هغه له کمونیستي کولیکتویزم سره په تضاد کې دي. د دوی انډیویجولیزم له دیموکراسۍ سره اړخ لګوي او د دوی د جرګو سیستم که څه هم نامنظم دی، په دې چې د افرادو په خوښه او آزادۍ ولاړ دی، د شوروي له تش په نامه دیموکراسۍ سره چې هغه په عمل او واقعیت کې له پاسه نه په ښکته دستور او دکتاتورۍ بنا ده، توپیر لري.

په دنیا کې به بل پنځلس میلیوني هېواد نه وي موجود چې دغومره شمېر ګوندونه، تنظیمونه، ډلې او دننه په دغو ګوندونو کې ګوندګي، په تنظیمونو کې تنظیم ګي او ډلو کې ډلګي ولري او بیا هم د جنګ او اضطرار او له مرکز څخه د تېښتې په دغسې آسانو شرایطو کې یو کل او عمومي مفهوم لکه افغانستان ته وفادار پاتې وي، سره له دې چې یو پراخ ۲۵۰۰۰۰ میل مربع ییزې خاورې کې بې شمېر ژبني کلتورونه او قامونه په اقتصادي ښکته حال او شکل کې ژوند کوي او د نړۍ دوهم ستر قدرت لکه شوروي اتحاد په ملک کې ننوتلی او دا څو کاله وشل چې د هغه په کلتوري او جغرافیوي ټوټه کولو پسې یې پښې لوڅې کړې دي. دا حال ثابتوي چې ډېر قدیمي کلتوري ارزښتونه، دیني او اخلاقي ارزښتونه، له جزیي اختلافاتو سره سره د آزادي له ارزښتونو سره په دغې خاورې کې د پېړیو پېړیو په بهیر کې په عجیب ډول نغښتي او یو راز دغسې خاص افغاني پیوستون یې نتیجه شوې چې په نرمۍ لکه اوبه او په کلکوالي لکه د پولاد په څېر دی. له بده مرغه بېرونیان دغه واقعیت د جنګ له شرایطو نه غیر په نور حالاتو کې ښه نه شي درک کولی، یا لږ تر لږه تر اوسه یې نه ده درک کړې.

## افغانان او ملي دفاع

د همدغه خاص افغاني پیوستون له برکته ده چې افغانان که هم د نفوس په لحاظ د خپلو ګاونډیو په پرتله ډېر کم دي، د ملي حاکمیت او د هغه د دفاع په با معکوساً ډېر ټینګ دي، دا ځکه چې د ملک د دفاع

په لار کې دوی په اصطلاح د پیریانو په شان ډېرېږي. افغانان له ویشتلو، وژلو او جنګ سره پوره عادي دي. په ځینو پښتني سیمو کې هغوی چې په خپل مینځي جنګونو کې د خپلو رقیبانو، دښمنانو او تربورانو له خوا وژل شوي، تر هغو چې په خپل مرګ مړه شوي، کم نه دي. په دوی کې تربوري د ژوند یو دایمي اړخ دی، لکه چې خوګیانیو کې د ملک قیس خېلو او ملک محمدجان خېلو تر مینځ دښمني چې له دواړو خېلو څخه ۱۵۰ تنه انسانان په کې وژل شوي، د ثور تر کودتا پورې د نیمې پېړۍ په بهیر کې دوام درلوده او یوازې د روسانو په یرغل سره په موقتي ډول قطع شوه. په هر حال ممکن په ټولې نړۍ کې به د افغانستان په شان بل داسې ملک نه وي چې ولسي افراد یې د ټوپکو په لرلو کې د هر بل ملک تر خلکو نه دمخه وي. که افغانان په اقتصادي ډګر کې د سړي په سر عایداتو له مخې تر نورو ملکونو څخه ډېر وروسته دي، برعکس د سړي په سر ټوپک لرلو کې د نړۍ تر هر بل ملک نه د مخه دي. همدغې نظامي او جنګي روحیې افغانستان د رنګ رنګ بېرته پاتې توب سره سره د نړۍ د ډېرو سترو طاقتونو په مقابل کې ساتلی، که څه هم ډېرې سیمې یې له لاسه تللې دي.

په هر حال افغانان له وسلو سره خاصه مینه لري، نو کله چې د نورو له خوا په دوی تېری وشي او دوی په یوه او بل علت وپارېږي، بې دربغه او سمدلاسه وسلو ته رجوع کوي او د ملي دفاع په کار کې د دوی د جنګیالیو شمېر د منظمو حکومتي سرتېرو په تناسب په کراتو زیاتوالی مومي او د دوی جنګ ګوریلایي او چریکي اشنا شکل غوره کوي. د ملي مبارزې په دغه جاري جنګ کې دوی هم د دغې پېړۍ په سر کې د سلف ډیټرمینشن یا ملي حاکمیت په مفهم ایستلی د ولسونو په ژوندانه کې حقیقي، په ځای او ټینګ دي او د هغه په مقابل کې د طبقاتو په نامه د انسانانو د ویش او پیوستون نظر هسې یو ضعیف او کتابي نظر دی، دومره ضعیت دی چې حتی د شوروي غونډې د نړۍ یو ستر قدرت هم و نه شو کولی، هغه په افغانانو ومني.

## د افغانانو د مقاومت غورځنګ د مرستې وړ غورځنګ

یو ولس چې له اقتصادي ببرته والي سره سره په خپلې خپلواکۍ او ملي حاکمیت دومره ټینګ وي، لکه افغان ولس چې دی او یو ولس چې له کمونیزم او د هغه له فرد زبېښوونکي او فرد نفي کوونکي ټوټالیټرین سیستم سره په دومره شدت مخالف وي او یو ولس چې هېواد یې د یوې پرلپسې پراختیا غوښتونکې نظامي امپراتورۍ په وره کې پروت وي او یو ولس چې ملک یې د جهان ډېرې حساسې او مهمې سیمې سره نښلوي، باید د جهان خپلواک ملتونه یې د خپلې ملي مجازي او عادلې مبارزې په وخت کې یواز ې پرېنږدي، مخصوصاً هغه ملتونه چې د ملي حاکمیت او سلف ډېټرمینشن اصل ته درناوي کوي او دغه اصل نه یوازې د هغوی د باندینې سیاست؛ بلکې د هغوی د ملي او سیاسي ژوند بنسټ تشکیلوي، له افغانانو سره د دوی په دغې حقې مبارزې کې مرسته کول په واقع کې کمونیزم په دغې حساسې سیمې کې قرنطین کول او د آزادۍ په مقابل کې له فرد زبېښوونکمي ټوټالیټریزم او دکتاتورۍ سره مقابله کول دي. که خدای مکړه دغسې زړور په خپلواکي مین ولس د خپلې برحقې آزادۍ په جګړه کې یوازې پرېښودل شو او ټوټالیټرین پرلپسې پراختیا غوښتونکې شوروي روسیه پرې اوس یا وروسته بره شوه، بیا دې څوک د پاکستان، ایران او منځنی ختیځ له مصئونیت نه ډاډه نه وي او په دې حال کې به لویدیځ له هغې سیمې نه په شاتګ ته مجبور شوی وي چې د مشرانو په قول یې د دوی لپاره حیاتي اهمیت لري.

## ژوند او آزادي

د دغې لیکنې په پای کې د هغو فقرو راوړل مناسب ښکاري چې پروفیسر کارل وټفوکل د خپل شرقي استبداد نومي نامتو اثر په پای کې راوړي دی او دلته له دغې موضوع سره چې په اصل او نهایت کې د آزادي او مریې توب مبارزه ده، نېغ ارتباط لري، وټفوګل وایي:

«په دې کې شک نه شته چې مونږ د یوې سرخلاصې تاریخي وضعې په مینځ کې واقع یو او په دې کې شک نه شته چې د اغېزمن انتخاب آزادي وجود لري، خو مونږ له خپلو فرصتونو څخه په صلاحیت سره استفاده نه ده

کړې. مونږ په لويديځې نړۍ کې د ټاټوليټرين ضد قوتونو لپاره پوره مجرا نه ده خلاصه کړې او چې دا کار مو نه دی کړی، مونږ د انتقال په حالت کې له اويوپيزو ټولنو سره د ټاټوليټرين ضد قوتونو د پياوړي کېدو په منظور لږ څه کړي دي.»

«خو په داسې حال کې چې د آزادۍ ډګر په ګړندۍ سره تنګېږي، د مدافعه کولو او پراخولو هڅه يې پياوړې کېږي. په داسې حال کې چې زمونږ د خپل دريځ قوي ارزيابي کولو ته مجبور شوي يو، مونږ به اوس هم زده کړو چې برى څنګه له ناکامۍ څخه وژغورو. يو نوى بصيرت چې پوره درک شوی، په قناعت بخښونکي ډول سره وړاندی شوی او په ډېرې زړورتيا سره تطبيق شوی دی، ممکن د نظامي او سياسي ايډيالوژيکي مبارزې مخ واړوي. دا ممکن د يو تاريخي بحران مخ بدل کړي. په نهايت کې د پوره دښمن په ضد د اتحاد د محاسبې د خطر منلو لپاره آمادګۍ او قرباني د ورکولو لپاره تياری د دوو ساده موضوعاتو په مناسبې ارزيابۍ پورې اړه لري، مريې توب او آزادي.»

«د لرغوني يونان ښو همشريانو د خپلو دوو تنو وطنوالو سپيرتياس (Sperthias ) او بوليس (Bulis) له عزم نه قوت ومونډ چې هغه د تام قدرت هوس تر پښو لاندې کړ. د سپارتا دغه استازي سوزا ته د تګ په لار کې د پاراس له يو لوړ رتبه افسر هايدرنيس (Hydernes) سره مخامخ شول چې هغه د دې په بدل کې چې که دوی د هغه دکتاتور څښتن ستر پاچا ته تسليم شي، هغوی به په خپل پلرني هېواد کې ستر قدرت ته ورسول شي.

«هيرودتس د يونان د فايدې په غرض او د ټولو آزادو انسانانو د ښېګڼې لپاره د هغوی ځواب ثبت کړی دی. دوی ورته وويل: (ته يو يو اړخيز مشاور يې، ته د نيمايي موضوع تجربه لرې، خو په هغې بلې نيمايي موضوع ستا علم نه رسيږي. ته د مريي په ژوند خبر يې، خو څنګه چې تا د آزادۍ څکه نه ده کړې، په دې نه پوهېږې چې هغه خوږه ده يا نه ده؛ او که ته د آزادۍ په نعمت پوهېدای، په مونږ باندې به دې امر کړی وای چې د هغې لپاره وجنګېږو، نه يوازې په نيزې سره، بلکې د جنګ په تبرګي سره.»[۲]

---

[۲] د ييل پوهنتون خپرونه، کال ۱۹۵۵، مخ ۴۴۸ .

# د اروابناد پوهاند محمد حسن کاکړ خپاره شوي اثار

۱. په افغانستان کې دولت او ټولنه ( د امیر عبدالرحمن خان دوره )
ـ انګلیسي
۲. افغانستان (د شوروي یرغل او د افغانانو غبرګون ) ـــ انګلیسي
۳. د افغانستان په کورني سیاست کې د پرمختګونو یوه څېړنه (۱۸۸۰ ـ ۱۸۹٦ ) ـــ انګلیسي
٤. د افغانستان سیاسي او ډپلوماټیک تاریخ ( ۱۸٦۳ ـ ۱۹۰۱ ) ـــ انګلیسي
٥. د افغان ـــ شوروي جګړه ـــ پښتو
٦. د پاچا امان الله واکمنۍ ته یوه نوې کتنه ـــ پښتو
۷. وطن ته یو سفر ( طالبان او اسلامي بنسټپالنه ) ـــ پښتو او دري
۸. پښتون ، افغان ، افغانستان ـــ پښتو
۹. د افغانستان په باب د ژینو جوړه ـــ پښتو
۱۰. افغان ، افغانستان(په هند، فارس او افغانستان کې د دولتونو رامنځته کول ) ـــ دري
۱۱. افغان انګلیس دوهمه جګړه ـــ پښتو او دري
۱۲. رڼا او دفاع د افغانستان دنفوسو،تاریخ او روانو پېښو په باب لیکنې
- پښتو
۱۳. دموکراسي در جهان امروز ـــ دري
۱٤. د کابل سلطنت بیان ـــ پښتو
۱٥. زما غوره لیکنې ـــ پښتو
۱٦. افغانستان در پنج قرن اخیر ـــ دري
۱۷. خاطرې ( د یوې دورې لنډ تاریخ ) ـــ پښتو
۱۸. د ثور کودتا د افغانستان د اوږدې بې ثباتئ پیلامه ـــ پښتو
۱۹. د ثور کودتا او د هغې ژورې پایلې ـــ پښتو
۲۰. تاریخ څه ته وایي ؟ ـــ پښتو

۲۱. جان سټوراټ مل په ۹۰ دقیقو کې — پښتو
۲۲. د انسانتوب په اړه د اخلاقپوهنې پرنسیپونه — پښتو

۲۳. جنګ او زمونږ نړۍ — پښتو
۲٤. د سقراط ، افلاطون ، ارسطو ، اپیکور او زینو په نظر ښه انسان — پښتو

# د بنسټ په اړه

کاکړ تاریخ بنسټ چې یو علمي، څېړنیز او خپرنیز بنسټ دی، په کال ۱۳۹۳ ه.ش کې ایجاد او د اطلاعاتو او کلتور وزارت په چوکاټ کې ثبت شو. دا بنسټ د هغې اړتیا له وجې چې په لرغونپوهنې، ټولنپوهنې، فرهنګپوهنې او سیاست کې موجوده وه، رامنځه شو؛ ترڅو یادو ساحو کې دقیقې علمي څېړنې وشي او د دقیقو علمي معیارونو له مخې پخواني آثار بیا چاپ کړي.

## زموږ فعالیتونه:




۱ . د تاریخي آثارو لیکل، ژباړل او خپرول
۲ . د پوهاند کاکړ د ټولو آثارو بیا ځلي چاپ او تر خلکو رسول
۳ . د پخوانیو آثارو تدقیق او بیا خپرول
٤ . تاریخي او علمي څېړنو ته لار هوارول
٥ . د تاریخي سیمینارونو، ورکشاپونو، کنفرانسونو او سمپوزیمونو جوړول
٦ . د علمي شخصیتونو، مناسباتو او تاریخي ورځو لمانځ ل
۷ . د تاریخي اسنادو را ټ ولول، ارشیف او بیا چاپو ل
۸ . د ملي ارزښتونو او میراثونو خوندي کو ل
۹ . د پوهاند کاکړ او نورو تاریخ لیکوالو کاتوبونه په غربیره بڼه جوړل

